# د عربي ژبې قواعد

# د نحو قواعد

# د صرفو قواعد

ژباړونکی:پوهنیار عبدالبشیر فضلي

بسم الله الرحمن الرحيم

د عربي ژبې قواعد په دوه ؤ برخو صرف او نحو ويشل شويدي:

د نحوې قواعد د هرې کلمې له وظيفې څخه د جملې په منځ کې بحث کوي او د کلمو د وروستي برخې شکل او اعراب څرګندوي، او يا په بل عبارت د نحو قواعد عربي کلمه د معرب والي ( د کليمې په پای کې تغير قبولول ) او مبني والي ( د کليمې په پای کې تغير نه قبولول ) او په جمله کې د هغوی د ځای په هکله بحث کوي. ولې د صرفو قواعد يواځې د عربي کليمې له جوړښت او کوم تغيرات چې د زيادت او نقصان په سبب په هغې کې راځي، بحث کوي.

دا کتاب په دوه ؤ برخو ويشل شوی ده چې لومړی برخه ئي د نحو قواعد او دوهمه برخه يې د صرفو قواعد په ډيره لنډه او ګټوره توګه احتوا کوي.

لومړی برخه: چې د نحو قواعد دي يوه سريزه او شپږ بابه لري. په سريزه کې د نحوې تعريف، د کليمې او د هغې ډولونه ( اسم، فعل او حرف ) همدا ډول د جملې او شبه جملې څخه په لنډه توګه يادونه شوې ده.

د دې برخې شپږ بابونه په لاندې ډول دي:

الباب الاول: اسم د معرب والی او مبني والی لامله.

الباب الثاني: فعل د معرب والی او مبني والی له لحاظه.

الباب الثالث: د حرف په اړوند بحثونه، او عمومي ملاحظې، د هغه هدوفو په اړه چې د يوه غرض او يوه مورد څخه په زياتو برخو کې کارول کيږي.

الباب الربع: عربي جمله او د هغې اعرابي محل.

الباب الخامس: د عربي ژبې پورې خاص د نحوې روشونه.

الباب السادس: د نحتوې د قواعدو عمومي تطبيقات چې د اعراب د مختلفو مثالونه

او ډولونو څخه جوړ دي.

دوهمه برخه: د صرفو د قواعدو برخه چې په پنځو بابونو ویشل کیږي او لاندې موضوعات لري:

الباب الاول: صرفي میزان.

الباب الثاني: د صرف هغه قواعد چې اسم پورې اړه لري او په لاندې ډول دي:

- اسم د جوړښت د نظره چې صحیح الاخر او غیر صحیح الاخر ته ویشل کیږي.
- اسم د نوع له لحاظه: مذکر او مؤنث.
- اسم د مسمی د عدد له لحاظه چې مفرد، مثنیٰ او جمع ته ویشل شوي.
- اسم د ترکیب له لحاظه یعنې جامد او مشتق.
- مصغر اسم.
- منصوب اسم.

الباب الثالث: هغه صرفي قواعد چې فعل پورې اړه لري چې په لاندې دول دي:

- فعل د جوړښت له نظره چې په دوله دی، صحیح او معتل.
- فعل د ترکیب له نظره چې په دوه ډوله دی، مجرد او مزید.
- فعل د زمانې له لحاظه چې په درې ډوله دی، ماضي، مضارع او امر.
- فعل د معمول له نظره په دوه ډوله دی، لازمي او متعدي.
- فعل د فاعل د ذکر او یا حذف له لحاظه چې معلوم او مجهول بلل کیږي.
- فعل د تعریف له لحاظه چې جامد او متصرف دی.

الباب الربع: د همزې، اعلال، ابدال قاعدې او له عربي قاموسونو څخه د ګټې اخیستنې لارې چارې او د لغتونو پیدا کول.

الباب الخامس: د صرف د قاعدو عمومي تطبیقات چې د ځینو جملو د مثنیٰ او جمع مختلف مثالونه او عباراتو باندې مشتمل دي او همدا ډول په پوره اندازه د مکسری جمع مثالونه او د ثلاثي مجردو د لویو افعالو او د هغوی د معنی بیان او د حرکاتو ضبط چې په لیکلو او ویلو کې ډیر معمول دي، د ماضي، مضارع او د هغوی له مصادرو سره یو ځای بیان شوي دي.

د دې کتاب د هرې برخې په پای کې یاد شوی قاعدې په لنډه توګه د یوه جدول په ډول ضمیمه شوي چې لوستونکې کولای شي په ډیر لنډ وخت کې له یو څه فکر وروسته ټول زده کړي.

دا کتاب د عربي ژبې د ځانګو او دیني مدرسو لپاره ډیره ښه مرجع ګڼل کیږي. ځکه چې د عربي ژبې قاعدې یې په ډیره لنډه توګه ولې پوره مکمل او په ډیره واضحه او مرتبه توګه چې د صرفو او نحوې قاعدې په کې شامل دي داسې تشریح کوي چې لوستونکي ته دا قوت ورکوي څو خپل تیت پرک معلومات سره راټول کړي او د کارولو لپاره یې یادونکي ته تیزه ذاکره وربښي.

همدا ډول د هغو خلکو لپاره چې د عربي ژبې د علم د زده کړې سره مینه لري او په خاص ډول د عربي ژبې د استادانو لپاره او هغه خلک چې د عربي ژبې له محاوري او لیکلو سره مخامخ دي ډیره ښه مرجع ګڼل کیږي، څو دوی د نحوې او لغوي غلطیو څخه وژغوري.

( و الله ولی التوفیق نعم المولی و نعم الرفیق )

لومړی برخه

## د نحو قاعدې

لر لیک

سریزه

د عربي کلمو ډولونه ( اسم، فعل، حرف )

جمله او شبه جمله.

لومړی باب

## اسم د اعراب او بنا له لحاظه

سریزه:

لومړی فصل:معرب اسم

مرفوع اسم

د اسم د رفع علامې ( ضمه (ص)، الف، واو ).

هغه حالات چې اسم په کې مرفوع وي لکه ابتدأ او فعلي حالت او داسې نور.

۱. مبتدأ او خبر

هغه حالتونه چې مبتدأ نه کاره وي.

هغه حالتونه چې مبتدأ حذف کیږي.

هغه حالتونه چې مبتدأ له خبر څخه وروسته راځي.

هغه حالتونه چې یوه مبتدأ څو خبرونه ولري.

هغه حالتونه چې د مبتدأ خبر حذف کیږي.

ناقص اسم فعل: ناقصه أسماء افعال لکه کان او نور.

متصرف ناقص فعلونه او غير متصرف ناقص فعلونه د افعال مقاربو د هر يوه اسم د شروع او رجاء د اِنَّ خبر.

نور مشبه بالفعل حروف يا د اِنَّ أخوات.

د اِنَّ د خبر ډولونه

د اِنِّ د خبر د تقديم حكم د اِنَّ تقديم

د ( ما ) اتصال په ان او نورو مشبه بالفعل حروفو.

د اِنَّ د همزې مكسور والى.

د اِنَّ د همزې مفتوح والى.

د اِنَّ په خبر او اسم د لام داخليدل.

الفاعل:

انواع الفاعل

د فعل افراد په هغه صورت کې چې ظاهر فاعل ته يې اسناد شوى وي، څنگه کولاى شو فاعل وپيژنو.

نائب فاعل

د معلوم فعل مجهول کول.

ظاهر نائب فاعل ته د مسند فعل د افراد لزوم.

نائب فاعل ته د مسند فعل تانيث.

د مرفوع اسم تابع

نعت ( صفت )

حقيقي نعت

سببي نعت

د حقيقي نعت انواع ( ډولونه )
عطف
د عطف حروف
تاكيد
لفظي تاكيد
معنوي تاكيد
بدل
د بدل انواع ( ډولونه )
منصوب اسم
د اسم د نصب علامې ( نښې ) فتحه، يا، الف په اسماء خمسه وكي.
د اسم د نصب حالتونه
د كان خبر
د كان د خبر انواع ( ډولونه )
د كان د خبر تقديم ( لومړى والى )
د نفى حروف ( اِنْ )، ( ما )، ( لا ) او ( لات ) چې هر يو دا حروف لكه ليس
مرفوع اسم او منصوب خبر لري.
د اِنَّ اسم
د جنس د نفى كولو، لا، ( ال النافية للجنس )
لا سيمّا
المفعول به تعدد
د مفعول به انواع ( ډولونه )

**د مفعول به مقدم راوړل له فاعل څخه د مفعول به تقديم ( لومړی توب )**

**د مفعول به ذکر او د هغه د فعل او فاعل حذف.**

**مفعول مطلق**

**هغه الفاظ چې د مفعول مطلق نائب کيدای شي.**

**د هغه فعل حذف چې په مفعول مطلق کې عامل وي.**

**مفعول له ( مفعول لاجله )**

**مفعول معه**

**د عطف د واو او د معيت د واو او د حاليت د واو توپير**

**مفعول فيه ( ظرف زمان او ظرف مکان )**

**مشهور او مهم د زمان ظرفونه.**

**مشهور او مهم د مکان ظرفونه.**

**متصرف ظرف**

**غير متصرف ظروف**

**الحال**

**د حال انواع ( ډولونه )**

**د حال تقديم ( لومړيتوب )**

**د حال تعدد**

**د فعل او د ذې الحال حذف**

**مستثنى**

**د استثناء ادوات**

**د الا مستثنى به**

د غیر او سوی مستثنی به
د خلا، عدا او حاشا مستثنی به
منادي
منصوبه منادي
په ( دال ) باندې د مقترن اسم نداء
د نداء د حرف حذف
تعجبي نداء – الندبة
الترخيم
تمییز
مميَّز
تمییز او د هغه د اعراب حکم
د عدد صورتونه
عدد د اعراب او بناء له لحاظه
عدد د تذکیر او نأنیث په اعتبار
د عدد معرفه کول په دال، باندې
د ترتیبي عدد جوړول د فاعل په وزن
کنایه لفظونه د ( بضع، کم، کذا، بیف ) د عددونو څخه
د منصوب اسم تابع
نعت، تاکید، بدل، عطف
مجرور اسم
د اسم د جر علامې ( نښې )، ( کسره، یا، فتحه په غیر منصرف اسم کې )

د اسم د جر حالات
په حرف جر باندې مجرور
د جر حروف
د جر زائده حروف
په اضافة باندې مجرور
مضاف
مضاف اليه
د مجرور اسم تابع
نعت، عطف تاکید او بدل
غير منصرف اسم
د تنوين تعريف
ممنوع من الصرف علم
ممنوع من الصرف صفت
ممنوع من الصرف اسم
مطلق ممنوع من الصرف
په اسم معرب باندې عمومي کتنه ( نظر )
أسماء خمسه ( أب، اُخ، حم، فو، ذو )
دوهم فصل
مبني اسم
ضمير
منفصل ضمائر

**متصل ضمائر**

**مستتر ضمائر**

**د ضمير تاكيد**

**عطف په ضمير**

**عمومي كتنه پر ضمائرو**

**د اشارې اسم**

**قريب ته اشاره**

**بعيد ته اشاره**

**الاسم المتصل به ( ال ) بعد اسم الاشارة**

**موصول اسم**

**د موصول صلة**

**د شرط اسم**

**د استفهام اسم**

**مركب اعداد له ( ۱۱–۱۹ ) پورې په استثناء د ( ۱۲ ).**

**ځينې مبني او مركب ظروف.**

**هغه اسماء افعال چې د ماضي په معنى دي.**

**هغه اسماء افعال چې د مضارع په معنى دي.**

**هغه اسماء افعال چې د امر په معنى دي.**

**عمومي كتنې د مبنې اسم په هكله.**

دوهم باب
فعل د بناء او اعراب له لحاظه
سریزه
لومړی فصل: مبنې فعلونه
د ماضي فعل
د امر فعل
د مضارع فعل چې د تانیث یا د توکید له نون سره متصل دی
د توکید نونونه
د فعل توکید
دوهم فصل: معرب فعل ( مضارع فعل )
د مضارع فعل رفع
د مضارع فعل د رفع علامې ( نښې )، ( ضمه– د نون ثبوت )
د مضارع د فعل نصب
د مضارع فعل د نصب علامې ( نښې )، ( فتحه– د نون حذف )
د مضارع د فعل د نصب حروف
د مضارع د فعل جزم
د مضارع د فعل جزم علامې ( نښې )، ( سکون، د نون حذف د حرف علة حذف )
هغه ادوات چې یواځې یو فعل مجزوم وي ( یواځې فعل شرط )
د فعل شرط حذف
د مضارع فعل جزم د طلب په ځواب کې
عمومي کتنې د فعل مضارع د جزم په اړوند

الباب الثالث
الحرف
مقدمه
لومړی فصل: هغه حروف چې یواځې پر اسم داخلیږي
د جر حروف
اِنَّ او نور د مشبه بالفعل حروف
د نداء حروف
د استثناء حروف د معیت واو، د ابتداء لام
دوهم فصل: هغه حروف چې یواځې پر فعل داخلیږي
د طلب حروف
د جزم حروف
ماولا_قد_ س_ سوف
دریم فصل: هغه حروف چې هم پر اسم او هم پر فعل داخلیږي
د عطف حروف
همزه او ( استفهامیه ) هل
د حال واو
د قسم لام
عمومي کتنې د بعضو حروفو په اړوند
همزه
باء
تاء

س او سوف

فاء

كاف

لام

نون

واو

يا

لا

ما

ام، او، اما

اى

نعم بلى، اجل

لكن، لكنَّ

ايا د ( مع ) كلمه اسم دى كه حرف؟

څلورم باب

د عربي جمله د وقوع او عدم وقوع د اعراب په محل كې له لحاظه

مقدمه:

لومړى فصل: هغه جملې چې د اعراب په محل كې دي.

دوهم فصل: هغه جملې چې اعرابي محل نلري.

پنځم باب

د نحوې اسلوبونه

مقدمه:
د شرط اسلوب
د شرط ادوات
د شرط د ځواب پیوستون لفاء سره ( هغه موردونه چې د تعقیب فا لزوماً ( او یا جوازاً د شرط د ځواب په ابتداء کې راوړل کیږي ).
د قسم اسلوب
د قسم ادوات
مقسم به
د قسم ځواب
د شرط او قسم یو ځای کیدل
د مدح او ذم اسلوب
د مدح او ذم افعال
د نعم اوبئس فاعل
مخصوص بالمدح او ذم
د تعجب اسلوب
د تعجب دوه صیغې
د اختصاص اسلوب
د اغراء او تحذیر اسلوب
د اغراء او تحذیر صورتونه
د استغاثي اسلوب
د استفهام اسلوب

د استفهام حروف

د استفهام اسمونه

شپږم باب

د نحوي قواعد و تطبیقات _ د اعراب بیلګې ( نمونې )

د معربو اسمونو د اعراب بیلګې ( نمونې )

د مبني اسمونو د اعراب بیلګې ( نمونې )

د مبني افعالو د اعراب بیلګې ( نمونې )

د معرب افعالو د اعراب بیلګې ( نمونې )

اسم د اعراب او بناء له لحاظه لنډیز

فعل د اعراب او بناء له لحاظه لنډیز

حرف او د هغه نقش په کلام ( جمله ) کې او د هغه تاثیر په وروستۍ کلمه کې او د هغه لنډیز د جملې د مبحث لنډیز کوم چې اعرابي محل لري او یایې نلري.

د نحوي کړنلارو لنډیز

# د نحو قواعد

## سریزه

**د عربي کلمو ډولونه ( اقسام )**

**د نحو تعریف: نحو هغه قاعدې دي چې د هغوی په واسطه د هرې کلیمې وظیفه د جملې په منځ کې او د جملې د هرې کلیمې د آخر حرکت او اعراب پیژندل کیږي.**

**کلمه: هر هغه لفظ دی چې د یوې مفرد معنی لپاره وضع او د یاد شوی معنی د رسولو لپاره استعمال شوی وي او د هغې جزء د معنی پر جزء دلالت ونکړي.**

**عربي کلیمې، اسم، فعل او حرف ته ویشل شوی دي:**

**ا. اسم: هر هغه کلمه ده چې له خپله یواځې په یوه معنی دلالت وکړي او له درې زمانو سره مقترنه نه وي. دې معنی ته د اسم مدلول هم ویل کیږي. د اسم مدلول کیدای شي ذات، صفت ( ذات مع الوصف ) یا معنی ( مصدر ) وي.**

**١. ذات: رجل ( انسان )، اسد ( حیوان )، زهرة ( نبات )، حائط ( جماد )، کابُل ( مکان ) او یوم ( زمان ) وي.**

**٢. صفت: کاتب، مکتوب، شریف او احسن**

**٣. معنی: ذهاب، اکرام، احسان، او تنظیف**

**اسم په لاندې مشخصاتو له فعل او حرف څخه بیلیږي.**

- **تنوین: اسم تنوین قبلوي لکه: رجلٌ، کتابٌ او شجرةٌ.**
- **ال: اسم د ( ال ) په ذریعه معرفه کیږي لکه: الرجل، الکتاب، الشجرة.**
- **د ندا حرف: اسم کولای شي وروسته د نداء له حرف څخه واقع شي لکه: یارجلٌ او یا محمدٌ.**

- **مسند او مسند اليه**: اسم مسند او مسند اليه راتلای شي لکه: الکتاب مفیدٌ.
- **مجرور**: اسم د حرف جر او یا د اضافة پر ذریعه مجرور کیدلای شي لکه:علی الشجرة او غصن الشجرة. په هره کلمه کې چې په یاد شوو علامو ( نښو ) څخه یوه علامه موجوده شي هغه کلمه اسم دی.

II. فعل هرې هغې کلمې ته ویل کیږي چې د یوه کار په کولو او یا د یوه کار د واقع کیدلو په یو له دریؤ زمانو کې دلالت وکړي.

او یا په بل عبارت: فعل هغه کلمې ته ویل کیږي چې په داسې معنی دلالت وکړي چې یو له دریؤ زمانو سره مقترنه وي. لکه: کتب، یجری، اسمع.

فعل په لاندې مشخصاتو او نښو له اسم او حرف څخه پیژندل کیږي او بیلیږي:

- له متحرک ( تا ) سره یو ځای کیدل چې د ماضي فعل فاعل دي لکه: کتبتُ، شکرتَ، بَسمْتِ
- له ساکنې ( تا ) سره یو ځای کیدل چې د ماضي فعل د فاعل په تانیث دلالت کوي. لکه: جاءت هند
- له داسې ( تا ) سره یو ځای کیدل چې په فعل مضارع دلالت کوي. لکه: تذهب، زینب.
- له مخاطبی یاء مؤنث سره په فعل مضارع او فعل امر کې یو ځای کیدل. لکه: اَنتِ تذهبین یاخالدة، اشکری ربَّکِ یا فاطمة.
- په لام داره او بې لامه فعل امر کې د توکید له نون سره یو ځای کیدل. لکه: لیکتبنَّ احمد رسالة

III. حرف هغه کلمې ته ویل کیږي تر څو چې له اسم او یا فعل سره یو ځای نشي په خپله معنی دلالت نشي کولای.

# جمله او شبه جمله

**جمله:** هغه لفظ چې له دوؤ یا زیاد له دوؤ کلمو څخه مرکب شوئ وي او مخاطب ته یو حکم ورسوي جمله یادیږي چې په عربي ژبه کې په بنستیز شکل په دوه ډوله دي:

- **اسميه جمله:** هغې جملې ته ویل کیږي چې په اسم ظاهر یا په ضمیر شروع شوې وي لکه: العلم نور، نحن ساعون الى السَعادة.
- **فعليه جمله:** هغه جمله ده چې په فعل شروع شوې وي لکه: حفرالرجل،یکتب الطالب،أدَرّس.

**شبه جمله:** جار او مجرور او مضاف ظرف په شبه جمله ویل کیږي لکه: فوق الشجرة، قبل الظهر، فی المنزل، علی المکتب.

**یادونه:**

عمومي اصطلاحات چې د کتاب په لومړی برخه کې یاد شوی په لنډه توګه په لاندې ډول راوړل کیږي څو مخکې له دې څخه چې په تفصیلي ډول بیان شي له هغوی سره بلدتیا تر لاسه شي.

١. **نکره اسم:** هغه اسم چې په غیر معین شی دلالت وکړي او شایع الدلاله وي لکه: رجل، اسد، مدینه، نهر.
٢. **معرفه اسم:** هغه اسم دی چې په معین شی دلالت وکړي او لاندې ډولونه لري:
   - ضمیر: لکه: انا، أنت، هو.....

- العلم: لکه: محمَّد، القاهرة، کابول.....
- اسم اشاره: لکه: هذا، هؤلاء...
- موصول اسم: لکه: الذی، التی، الذین، اللائی.
- په ال معرفه: لکه: الرجل، الاسد، المدینه، النهر.
- هغه مضاف چې یاد شوؤ معرفو ته مضاف شوی دي. لکه: کتاب احمد، قلمی، حقیبة الرجل.
- معین منادی لکه: یامناضل.

۳. تنوین: هغه ساکن نون دی چې د اسم په آخر کې د دوؤ ضمو، دوؤ فتحو یا دوؤ کسرو په شکل لیکل کیږي. لکه: جاءزیدٌ و رجل، رأیت زیدًا و رجلاً و مردت بزیدٍ و رجلٍ.

۴. مفرد اسم: هغه اسم دی چې یوائې پر یوه مذکر یا یوه مؤنث دلالت وکړي. لکه: ولد، فتاه.

۵. مثنیٰ اسم: هغه اسم دی چې الف او نون یې په مفرد کې زیاتیږي څو د مفرد په دوه چنده دلالت وکړي. لکه: ولدان،ولدین، فتاتان، فتاتین...

٦. جمع اسم: هغه اسم دی چې د مفرد د تغییر په سبب یې د مثنیٰ له افرادو څخه په زیاتو افرادو دلالت وکړي او په درې ډوله دي:

- سالمه جمع مذکره: هغه جمع ده چې په مفرد کې یې د واو او نون او یا د یاء او نون په زیاتولو سره له دوؤ څخه په زیاتو افرادو دلالت وکړي. لکه: مهندسون او مهندسین.
- سالمه جمع مؤنثه: هغه جمع ده چې زیادت د الف او تا په آخر د مفرد کې لکه: مهندسات جوړیږي.

- مکسره جمع: د مفرد د صورت په تغیر سره جوړیږي لکه: رجال، میادین، قضاة.

۷. **مصدر**: هغه اسم دی چې په مجرده معنی دلالت کوي او د خپل فعل له حروفو څخه جوړ شوئ وي. لکه: حضور او طلوع چې د حضر او طلع له حروفو څخه د یوه حرف په زیاتوالي جوړ شوئ دی.

مصدر په دوه ډوله دی:

- صریح مصدر: لکه پورته دوه مثالونه.
- مؤل مصدر: هر هغه عبارت دی چې د أنْ او فعل څخه له أنَّ او د هغه له اسم او خبر څخه جوړیږي چې تأویل یا اړول یې صریح مصدر ته ممکن وي یعنې وکولای شي څو د صریح مصدر پر ځای چې اسم دی واقع شي. لکه: أرجو أن تحضر = ارجو حضورک، اتمنی أن الشمس طالعة. یعنې:أتمنی طلوع الشمس.

۸. **ماضي فعل**: هغه فعل دی چې د یوه کار په وقوع باندې مخکې د تکلم له زمانې څخه دلالت کوي. لکه: دَرَسَ، تقدَّم.

۹. **مضارع فعل**: هغه فعل دی چې د یوه شی په وقوع د تکلم په زمانه کې او یا وروسته له زمانې د تکلم څخه تر سره کوي. لکه: یدرس، یتقدم.

۱۰. **د امر فعل**: هغه فعل دی چې د یوه شی د واقع کیدلو غوښتنه وروسته له زمانې د تکلم څخه تر سره کوي. لکه: اُدرس، تَقَدم.

۱۱. **حروف العلة**: الالف، الواو، والیاء.

۱۲. **شکل**: حرکت او یا حرف.

# لومړی باب

# الاسم

## د اعراب او بنا له لحاظه

**د نحو د قاعدو پر بنسټ اسم، معرب او مبني ته ويشل شوئ دی.**

1. **معرب اسم: هغه اسم دی چې د آخر شکل يې په سبب د تغيير د موقع په جمله کې د موقع په جمله کې بدلون ومني لکه د ( رجل ) کلمه چې آخر يې ضمه، فتحه او کسره په جمله کې د موقعيت له لحاظه مني چې د همدې باب په لومړي فصل کې به پوره توضيح شي.**
2. **مبني اسم: هغه اسم دی چې په آخر شکل کې په سبب د تغيير د موقع په جمله کې تغيير نه مني او تغيير نه راځي لکه د: ( نحن ) کلمه چې مبني اسم دی او په هر ځای د جمله کې چې راشي په آخر کې يې ( ضمه ) وي همدا ډول د ( هذه ) کلمه.**

**مبني اسمونه په لاندې ډول دي:**

**ضمائر، د اشارې اسمونه، موصوله اسمونه، د شرط اسمونه، د استفهام اسمونه، بعضې ظروف، أسماء افعال، د مرکبه اعدادو اسمونه چې دا ټول مبني اسمونه د دې باب په دوهم فصل کې توضيح کيږي.**

# الفصل الاول

## معرب اسم

**معرب اسم هغه اسم دی چې آخر شکل یې په سبب د هغه تغییر چې په جمله کې راځي د موقعیت له لحاظه، تغییر مومي.**

**معرب اسم په درې ډوله دی:**

- **مرفوع**
- **منصوب**
- **مجرور**

## مرفوع اسم

**۱. د اسم د رفع علامې ( نښې ) په لاندې ډول دي:**

**۱. ضمه: په مفرد اسم کې لکه:**

**نجح الطالبُ (ملفوظه ضمه ) رجع موسىٰ ( مقدرة ضمه ).**

- **په سالمه جمع مؤنثه کې لکه: حضرت المدرساتُ.**
- **په مکسره جمع کې لکه: قام الرجالُ.**

**۲. الف: په تثنیه کې لکه: نجح الطالبان، الطائرتان عالیتان په دې باید پوه شو چې دا ( الف ) د اسم جزء نه دی، لکه ضمه یواځې د رفع علامه ده.**

**۳. واو: په سالمه مذکره جمع کې لکه: حضرالمهندسون.**

په دې باید پوه شو چې دا واو نه اسم دی او نه د اسم جزء دی بلکې یوائې یو حرف دی چې د جمع او رفع علامه ده. همدا ډول د تثنیه الف د مثنیٰ او رفع علامه ده.

- په اسمأ خمسه ؤ کې: اب، اخ، حم، فو، ذولکه جاء اُخوک.

**یادونه:**

۱. ضمه د رفع په اصلي علامه، الف، واو هر یو د رفع په فرعي علامه یادیږي.

۲. د معتل الاخر اسم د رفع علامه لکه فتی او قاضی مقدره ضمه په الف او یاء باندې جاري کیږي.

۲. **د اسم د رفع حالات:**

اسم په شپږو ځایونوکې مرفوع وي چې عبارت دی له:

۱. مبتدأ.

۲. خبر.

۳. د ناقصه افعالو، اود مقاربه افعالو د شروع او د رجاء اسم.

۴. د مشبه بالفعل د حروفو خبر.

۵. فاعل.

٦. نائب فاعل.

**مبتدأ:**

۱. مبتدأ هغه مرفوع اسم دی چې له لفظي او غیر زائد عامل څخه مجرده وي. لکه: الذهب معدن، بحسبک أن تتعلم ما تحتاج اِلیه انت و مجتمعک، القاضیان لیحکمان بالعدل، اللاعبون متنافسون، الممرضات رحیمات.

په لومړۍ جمله کې ( الذهبُ ) مبتدأ مرفوع او د رفع علامه یې ضمه ده.

په دوهمه جمله کې ( بحسب ) مبتدأ مرفوع او د زائد حرف جر کسره د رفع د علامې د ظهور مانع ګرځیدلئ ده چې ضمه ده.

په دریم مثال کې: ( القاضیان ) مبتدأ مرفوع او د رفع علامه يې ( الف ) دا تثنین دی ( د تثنیه الف ).

په څلورم مثال کې: ( اللاعبون ) مبتدأ مرفوع او د رفع علامه يې د جمع واو دی.

په پنځم مثال کې: ( الممرضات ) مبتدأ مرفوع او د رفع علامه ضمه ده ځکه چې جمع مؤنثه سالمه ده.

۲. مبتدأ:

الف: مبتدأ معرب اسم وي لکه په تیرو مثالونوکې مو ولیدل.

ب: مبتدأ مبني اسم وي: ( ضمیر ) لکه ( انا افغانیٌ ) انا ضمیر مبني دی په محل د رفع کې مبتدأ.

- اشاره اسم لکه: هذا من فضل ربی، هذا د اشارې اسم مبني مبتدأ په محل د رفع کې دی.
- موصول اسم لکه: الذی فازبالجائزة له انتاج ادبی رائع، الذی موصول اسم مبني په محل د رفع کې مبتدأ کې.
- د شرط اسم لکه: من یحصد یرفع، من شرطیه اسم مبني په محل دی رفع کې مبتدأ، د دې موضوع شرح د مبني اسم په درس کې په دوهم فصل کې راځي.

ج: مؤل مصدر له ( اُن ) مصدریه او فعل څخه:

لکه: أن تتحدوا خیر لکم، ځکه چې ( أن تتحدوا ) په معنی د ( اتحادکم ) مبتدأ دی او ( خیر لکم ) د هغه خبر.

۳. مبتدأ لکه څنګه چې له نوم څخه يې معلوميږي بايد د جملې په اول کې راشي مګر جائزه ده چې له مبتدأ څخه مخکې د ابتداء ( لام ) واقع شي لکه ( لزيد افضل من عمرو ).

( لام ) د ابتداء لام زيدٌ مبتدأ مرفوع د رفع علامهٔ ظاهره ضمه ده، همدا ډول جائز دی چې له مبتدأ څخه مخکې حرف نفي يا حرف استفهام راشي. لکه: مانيل المطالب بالتمنی، ما حرف نفي نيل المطالب مبتدأ مرفوع د رفعې علامه ظاهره ضمه دی.
هل انت ناجحٌ، هل د استفهام حرف ( انت ) مبني ضمير مبتدأ د رفع په محل کې.

۴. دې قاعدې له لحاظه مبتدأ معرفه وي لکه څنګه چې په پورتنيو مثالونوکې مو وليدل، ځکه چې مبتدأ هغه موضوع دی چې د هغه په اړه خبرې کيږي يا په بل عبارت هغه اسم دی چې د مسمیٰ صفت يا کارکې بيانيږي.

عرب د هغه شی د صفت يا کار يا د شخص د صفت يا کار څخه خبرې کول چې اوريدونکی ته د خبرو په وخت کې معلوم نشي بې فايدې بولي مګر سره لدې داسې حالات شته دي چې د بعضو ملحوظاتو په خاطر مبتدأ نکره وي:
الف– موصوفه نکره: لکه رجل کريم عندنا، رجل موصوفه نکره، کريم د هغه صفت له موصوف سره مبتدأ مرفوعه او د رفع علامهٔ ظاهره ضمه.
ب– مضافه نکره: طالب احسان واقف، طالب نکره مضافه مبتدأ مرفوعه او د رفع علامهٔ ظاهره ضمه.
ج– له نکرې څخه مخکې د نفی حرف وي: لکه ما ظالم ناجح ( ظالم ) مبتدأ نکره ځکه چې مسبوق په حرف نفي دی.
د– نکره چې مسبوق په استفهام وي: لکه ( هل رجل فيکم ).

۵. مبتدأ عادتاً له عناوینو څخه حذفیږي لکه د کتابونو عناوین، د قصو او صحیفو عناوین او نور لکه چې ویل کیږي ( حالات رفع الاسم ) چې تقدیر یې دا ډول دی ( هذه حالات رفع الاسم ).

- همدا ډول مبتدأ حذفیږي چې خبر یې مصدر نائب له خپل فعل څخه وي لکه ( صبر جمیل ) یعنې ( موقفنا صبر جمیل ) موقفنا هغه مبتدأ دی چې دلته حذف شوې ده.
- کله چې یو دلیل په وجود د مبتدأ دلالت وکړي نو مبتدأ حذفیږي لکه:

( علی المکتب ) د هغه چا په ځواب کې چې وپوښتی ( أین الکتاب ) تقدیر یې داسې کیږي. چې تقدیر یې په دې ډول دی: ( الکتاب علی المکتب ) څرنګه چې کتاب په پوښتنه کې ذکر شوئ دوه وارې ورته حاجت نشته دی.

٦. کله مبتدأ وروسته او خبر مقدم راځي لکه ( ممنوع التدخین ).

چې ( التدخین ) مؤخره مبتدأ ده او دابحث په دخبر په برخه کې تشریح شي.

خبر:

١. خبر د جملي اسمیې هغه جز دی چې د هغې جملې د مبتدأ په اړه یو حکم څرګند کړي چې دواړه مبتدأ او خبر ته مفیده جمله یا کلام ویل کیږي.

لکه: المدرس حاضر ( حاضر ) مرفوع په ظاهره ضمه.

( العینان مبصرتان ). مبصرتان مرفوع خبر څرنګه چې تثنیه دی نو د رفع علامۀ الف دی.

الفلاحــــون مجدون. ( مجدون ) مرفوع خبر دی څرنګه چې جمع مذکره

سالمه ده نو د رفع علامهٔ یې واو ده.

المهندسات ماهرات. ( ماهرات ) مرفوع خبر دی څرنګه چې مؤنثه سالمه جمع ده د رفع علامهٔ ضمه ده.

۲. خبر په عدد کې ( مفرد، تثنیه، جمع ) او نوع کې ( مذکر او مؤنث ) له مبتدأ سره یو ډول داځي لکه: المدرس حاضر، المدرسان حاضران، المدرسون حاضرون او المدرسات حاضرات.

کله چې مبتدأ د غیر عاقل جمع وي لکه: المنازل، الجبال، السیارات، الاشجار او نور. جائز دی چې خبر مؤنث مفرد یا خبر مؤنثه جمع وي لکه: الجبال عالیة یا عالیات، السیارات مسرعة یا مسرعات.

۳. د خبر ډولونه:

خبر په درې ډوله دی: ظاهر اسم، شبه جمله، اسمیه جمله، فعلیه جمله.

الف _ ظاهر اسم: ظاهر اسم که معرب وي او که مبني کله چې خبر واقع شي معمولاً نکره وي. ظاهر اسم معرب په دوه ډوله دی.

جامد اسم او مشتق اسم:

- جامد اسم: هغه اسم دی چې له بل شی ( مصدر، فعل، اسم ذات ) څخه نوی جوړ شوئ او په دوه ډوله دی: اسم ذات او اسم مصدر چې دا دوه ډوله دی: اسم ذات او اسم مصدر چې دا دواړه ډولونه خبر واقع کیدای شي لکه: هذا اسد، هذا علم.
- مشتق اسم هغه اسم دی چې له فعل، مصدر یا اسم ذات څخه جوړ شوئ وي او پر ذات د یوه وصف پر قیام دلالت کوي.
- خبر کله اسم جنس وي لکه : انت اسد، هو انسان، ذاک حجر.

- مبني اسم هم خبر واقع کیږي لکه اسم موصول په دې آیت کې: اولئک الذین اشتروا الضلالة علی الهدی. ( الذین ) موصول اسم له صله سره خبر په محل دی رفع کې.
- اسم ضمیر: لکه احمد انا، الشاعر انت، الکاتب هو دا درېواړه ضمائر خبر دي په محل د رفع کې.
- د اشارې اسم: کله کتابک هذا، کراستک هذه، المجرمون هؤلاء، هذا، هذه، هؤلاء په پورتنیو جملو کې خبر واقع شوي دي.

ب _ شبه جمله: ( جار او مجرور یا ظرف )

لکه: العامل فی المصنع. فی المصنع جار او مجرور خبر دی مبتدأ په محل کې د رفع کې.

الحدیقة اَمَامَ المنزل. ( امام المنزل ) شبه جمله ده چې له ظرف او مضاف الیه څخه مرکبه ده.

**یادونه:**

د امام کلمه او نور ظرفونه چې خبر واقع کیږي څرنګه منصوب دي؟

چې فتحه د هغوی د نصب علامه ده په داسې حال کې چې هغوی خبر دي باید مرفوع وي؟

د دې خبر تفسیر داسې کیږي: کله چې خبر شبه جمله او له ظرف او یا جار او مجرور څخه جوړ شوي وي په حقیقت کې خبر د ظرف یا جار او مجرور عامل چې مقدر وي، دی. لکه: الحدیقة تستقر یا الحدیقة مستقرة امام المصنع.

ج _ خبر اسمیه یا فعلیه جمله:

لکه: النجاح اساس العمل. اساس العمل: اسمیه جمله، خبر په محل د رفع کې.

الشمس اشرقت. ( اشرقت ) فعليه جمله د رفع په محل کې خبر. د دې ډول خبر شرحه به په ( الجملة و مکانهامن الاعراب ) بحث په الباب الرابع کې وشي.

۴. دا شرط نه دی چې خبر مستقیماً وروسته له مبتدأ څخه ذکر شي کله کله د مبتدأ او خبر تر منځ یو فاصل یا زیاد واقع کیږي. خبر په دې دلیل چې د فائدې متمم جزء دی او یا هغه عمده جزء دی چې د مبتدأ سره یې په ترکیب مفیده جمله منځ ته راوړي،پیژندل کیږي.

لکه: الاصلاح الزراعی مفید: الاصلاح مبتدأ مرفوع په ضمه. الزراعی نعت د مبتدأ ( صفت )، مفید خبر دی مبتدأ مرفوع په ضمه. که یوائې ووایو چې ( الاصلاح الزراعی ) او چپ شو د جملې معنی ناقصه کیږي. او کوم حکم نه افاده کوي تر څو چې د مفید یا د هغه په ډول کوم بل لفظ ذکر نشي.

بل مثال: صوت البلبل جمیل، جمیل د مبتدأ خبر مرفوع په ضمه او که یوائې ( صوت بلبل ) وویل شي او بس، معنی نه پوره کیږي تر څو چې ( جمیل ) و نه ویل شي.

۵. د خبر تقدیم په مبتدأ جوازاً:

په لاندې ځایونو کې جائز دی چې خبر له مبتداء څخه مخکې ذکر شي:

الف _ کله چې خبر ته صدارت ورکول مقصود وي.

لکه: ممنوع التدخین. ممنوع مقدم خبر مرفوع په ضمه. التدخین مؤخره مبتدأ مرفوع په ضمه.

ب _ کله چې له مبتدأ څخه مخکې حرف نفي او یا استفهام راشي او خبر هم صفت وي. لکه: اقائم انت، او لکه ماقائم انت. قائم په دواړو مثالونو کې مقدم خبر مرفوع په ضمه دی. انت مبني ضمیر د رفع په محل کې مؤخره مبتدأ.

ج ـ کله چې خبر شبه جمله وي او مبتدأ معرفه وي لکه: فی التأنی السلامة. ( فی التأنی: جار او مجرور مقدم خبر او السلامة مؤخره مبتدأ مرفوع په ضمه او لکه: امام القاضی قائل الحق ( امام القاضی ) ظرف، مقدم خبر، قائلٌ مؤخره مبتدأ مرفوع په ضمه. الحق مضاف الیه مجرور په کسره.

٦. د خبر تقدیم پر مبتدأ وجوبا: په لاندې ځایونو کې واجب دی چې خبر له مبتدأ څخه مخکې راشي.

الف ـ په هغه صورت کې چې خبر شبه جمله او مبتدأ غیر موصوفه نکره او مضاف نه وي. لکه: فی الدار رجل. فی الدار جار او مجرور خبر مقدم او رجل مؤخره مبتدأ مرفوع په ضمه.

عندی دینار. عندی: شبه جمله مقدم خبر. دینار مؤخره مبتدأ مرفوع په ضمه.

ب ـ کله چې خبر داسې لفظ وي چې مختص صدارت ( لومړي توب ) ته وي لکه د استهفام اسمونه: متی الامتحان: متی د استفهام اسم مقدم خبر ـ الامتحان ـ مؤخره مبتدأ.

ج ـ کله چې مبتدأ ملحق له داسې ضمیر سره وي چې هغه د خبر یوې برخې ته راجع شي لکه: للسلام تبعاته. نو ثابت للسلام ټول خبر دی او کوم ضمیر چې په تبعات کې دی هغه یواځې سلام ته راجع کیږي چې د خبر یوه برخه ده.

٧. د خبر تعدد: کله یو مبتدأ ډیر خبرونه یا متعدد خبرونه لري. لکه: الرمان حلوحامض. چې حلو لومړی خبر او حامض دوهم خبر دی مرفوع په ضمه.
النیل سخی وفی فیاض بالخیر، سخی، وفی، فیاض په خپل ځای کې هر یو لومړی، دوهم او دریم خبر دی او مرفوع په ضمه دی.

٨. په بعضې ځایونوکې خبر حذفیږي چې شرحه یې په خپل ځای کې راځي.

څه یو له هغو ځایونو څخه هغه خبر دی چې مبتدأ یې وروسته له ( لولا ) ذکر شوئ وي. لکه: لولا الطبیب ما شفی المریض چې تقدیر یې په دې ډول دی. لولا الطبیب موجود، ماشفی المریض چې خبر یې حذف شوئ ده.

- کله چې مبتدأ صریحا قسم وي. لکه: لعمرک ان الحیاة کفاح تقدیر یې په دې ډول دی: لعمرک قسمي اِن الحیاة کفاح. لعمرک، مبتدأ او قسمی محذوف خبر د مبتدأ.
- کله چې پر مبتدأ د مصاحبت د واو په واسطه بل کوم اسم عطف شي. لکه: کل جندی وسلاحه چې تقدیر یې داسې کیږي: کل جندی و سلاحه، مقترنان خبر چې مقترنان دی، حذف شوئ دی.

**د کان اسم:**

١. هره مبتدأ چې کان یا د هغې اخوات مخکې له هغې څخه ذکر شي مرفوع کیږي لکه: کان زید قائماً. زید د کان اسم دی او مرفوع په ضمه دی.

**د کان اخوات په لاندې ډول دي:**

- اصبح. لکه: اصبحت الشجره متمرة.
- اضحیٰ. لکه: اضحیٰ المهندسون مهتمین بعملهم.
- ظل. لکه: ظل العامل مکبا علی عمله.
- امسی. لکه: امست اسماء ممطرة.
- بات. لکه: بات النجم لامعًا.
- صار ( تحول ). لکه: صار القطن نسیجا.
- لیس ( نفی ). لکه: لیس النجاح سهلاً.
- ما ذال ( استمرار ). لکه: ما ذال السلام عملا محببا.

- ما برح ( استمرار ). لکه: ما برح الصاروخان منطلقین الی القمر.
- ما انفک ( استمرار ). لکه: ما انفک الطفل نائماً.
- ما دام ( لبیان المدة ). لکه: لا تعبر الشارع مادامت الاشارة حمراء.

کان او د هغې اخوات ناقصه افعال یادیږي ځکه چې د جملې د معنی د تکمیل لپاره خبر ته اړتیا لري. پر خلاف د تامه افعالو چې د جملې معنی کولای شي د فعل په ذکر تکمیل شي. لکه: جاءزید، کتب عمرو. خو د کان زید قائماً په جمله کې د قائماً له یادولو پرته د جملې معنی نه تکمیلیږي.

ناقصه افعال په ناسخه افعالو هم یادیږي ځکه چې د خبر اعرابي حکم ته تغییر ورکوي.

۲. کان او دهغه اخوات افعال دي:

کان او د هغه اخوات د تصریف له اړخه په درې ډوله تقسیم شوی دي:

الف _ هغه ناقصه افعال چې علاوه له ماضي څخه مضارع او امر هم لري، مضارع او امر یې لکه د ماضي په شان عمل کوي چې دا ډول عبارت دي له: کان، اصبح، اضحیٰ، ظِلَّ، امسیٰ، بات، صار څخه.

لکه: یظل العامل مکبا علی عمله ( مضارع ).

کونوا یدا واحدَةً ( امر ).

او د ما دنفي دخول پر دې افعالوجائز دی لکه: ما کان زید قائماً لم تصبح الشجر مثمرة.

ب _ بله برخه داسې افعال دي چې علاوه له ماضي څخه یواځې فعل مضارع یې استعمال شوئ او لکه ماضي فعل یې داسې عمل کوي چې دا د استمرار افعال دي (مازال، مابرح،ماانفک،مافتئ).لکه:لایزال السلام أملاً محببا، ولم ینفک الطفل یبکی.

ج ـ دوه فعلونه د ناقصه افعالو څخه جامد دی چې نه د هغوی مضارع فعل او نه امر فعل استعمال شوي دي چې عبارت دي له ( ليس ) او ( مادام ) څخه.

( ما ) په ( مادام ) کې مصدری ( ما ) بلل شوئ او مخکې له مادام څخه بايد جمله ذکر شوې وي که نه کامله افاده نه ترلاسه کيږي. لکه: لن ينتصر العدو مادام التعاون قائماً.

**يادونه:**

ټول ناقصه افعال په استثناً د ( فتئ ، زال او ليس ) کولای شي لکه فعل تام غوندې يعنې له فاعل سره يې له خبره يوه مفيده جمله جوړه کړي. لکه: سأ تابع اخباره أينما کان. په دې جمله کې ( کان ) په معنیٰ د ( وجد ) دی.

( ألا إلى الله تصير الأمور ) په دې مثال کې ( تصير ) په معنیٰ دی ( ترجع ) دی.

اَوَتْ الطيور الی عشاشها و باتت. په دې مثال کې ( باتت ) په معنیٰ د شپه يې وکړه دی. په دې دريواړه مثالونو کې ( وجد )، ( تصير ) او ( باتت ) تام افعال دي چې د لومړي فعل فاعل مستتر ضمير دی، د دوهم فعل فاعل ( الأمور ) او د دريم فعل فاعل هم ضمير مستتر دی او د جملې په تکميل کې خبر ته ضرورت نلري.

۳. کان کله نا کله زائده هم راځي. لکه: لا يوجد کان مثلک ( کان زائده دی).

۴. کله د نون حرف له مجزوم مضارع د کان څخه چې ( يکن ) دی د ډير استعمال په وجه حذفيږي نو ( لم يک ) د ( لم يکن ) پر عوض ويل کيږي.

۵. څرنگه چې د کان اسم مخکې له راتگ د ناقصه افعالو څخه کيدای شي چې مبتدأ اووسي. لکه مجرده مبتدأ له عواملو څخه، چې معرب اسم وي لکه چې په مثالونوکې مو وليدل، کولای شي مبنی اسم وي ( ضمير، اسم

اشاره او موصول ) لکه: اصبحت متقاولاً. ( اصبح ) ماضي فعل ناقصه او تا ضمير مبني په محل د رفع کې اسم د اصبح.

امسیٰ هذالمريض مستريحاً. ( هذا ) اسم اشاره مبني په محل د رفع کې مبني اسم. انشاءالله دا مطلب د مبني په درسونوکې په راتلونکی فصل کې تشريح کيږي.

٦. مقاربه افعال، رجاء او شروع هم د کان له اخواتو څخه شمېرل کيږي. دا درې قسمه افعال په لاندې ډول دي:

کاد، کرب او شک. دا افعال په قريب الوقوع والي د خبر د هغې مبتدأ دلالت کوي کوم چې دا افعال پرې داخل شوي دي.

عسیٰ، حری، اخلولق. دا افعال پر متوقع والي د خبر د خپلې مبتدأ دلالت کوي.

شرع، إنشاء، أخذ، طفق، جعل، هبَّ. دا افعال په شروع او پيل د وقوع د خبر د خپل اسم دلالت کوي.

دا ټول درېواړه ډولونه افعال په هغه اسميه جمله واردېږي چې خبر يې فعل مضارع وي او وروسته له راتګ څخه د دې افعالو مبتدأ ته د ياد شوی فعل اسم وايي او د مبتدأ خبر د هغه فعل خبر بولي.

او په لاندې ډول ( أن ) د دوی په خبر کې راځي:

- په وجوبي ډول له ( حری او اخلولق ) سره داسې ويل کيږي:

حری الطلب أن يعالج الامراض المستعصيه.

په همدې ډول: اخلولق الطلب أن ...

( أن ) زيات د عسیٰ ( او شک ) په خبر کې استعماليږي. لکه: عسى الرخاء أن يدوم. لکه: عسیٰ أن تکرهو اشيئا و يجعل الله فيه خيراً کثيراً.

او شک اللیل أن ینجلی

أن له ( کاد ) او ( کرب ) سره کم استعمالیږي لکه: کادت الازمة تنفرج _ او _ کادت الازمة أن تنفرج.

او د افعال شروع په خبر کې ( أن ) هیڅ کله نه راځي لکه: أخذ الا و لا د یلعبون _ هبت الطیور تَغَرَّدُ.

یادونه:

افعال مقاربه، رجاء او شروع متصرف فعلونه نه دي یعنې یواځې ماضي استعمال شوئ دی خو د کاد او اوشک مضارع هم استعمال شوئ دی.

لکه: یکاد البرق یخطف ابصارهم _ یوشک الصیف أن ینتهی.

۱. د انَّ خبر: هر هغه خبر ته ویل کیږي چې د هغه مبتدأ په سبب د اِنّ لفظاً او یا محلا منصوب شوئ وي.

د ( اِنّ ) خبر همیشه مرفوع وي لکه: ان زیداً قائم.

( قائم ) د انّ خبر مرفوع په ضمه.

اِنّ اللاجئین عائدون الی وطنم. عائدون د اِنّ خبر دی مرفوع په واو ځکه چې جمع مذکره سالمه ده.

۲. د اِنَّ اخوات:

- اِنّ: د تاکید لپاره په اسمیه جمله داخلیږي. لکه: اِنَّ المجدَّ ناجح.
- اَنّ: د توکید لپاره ده او باید له هغه څخه مخکې کلام موجود وي. لکه: یسعدنی اَن الصناعة متقدمة فی بلدنا.
- کأنّ: د تشبیه لپاره راځي کله چې خبر یې اسم جامد وي. لکه: کأن محمودا أسد. او ( ظن ) د ګومان لپاره دی که خبر یې مشتق وي لکه:

كأنک فاهم لکن: د استدراک لپاره راځي ) د مابعد لپاره  د ماقبل حکم مخالف حکم ثابتوي، نو ضروري ده چې له لکنّ څخه مخکې کلام وجود ولري. لکه:

الکتاب صغیر لکنه مفیدٌ. ما هذا ابیض لکنه أسودٌ.

- لعَلَّ: د رجاء یا د خبر د وقوع د امیدوارۍ لپاره استعمالیږي. د رجاء معنیٰ دا ده چې د هغه شي توقع کول کوم چې د لاسته راوړلو اعتماد یې نه وي. لکه: لعلَّ الجو معتدل غداً. په ډېرواستعمالي حالاتوکې د لعل لومړی لام حذف شوئ. لکه: عل الفَرَج قریب.
- لیت: د تمني لپاره استعمالیږي. او هغه د یوه شي له لاس ته راوړلو سره مینه درلودل دي. لکه: لیت المسافر قادم _ لیت النتیجة حسنة.

کله چې د لیت اسم د متکلم ضمیر وي د لیت له تاء څخه وروسته نون او یا د متکلم ( ی ) راځي. لکه: لیتنی سعید. دا کلام چې لیت نوي داسې کیږي: انا سعید.

- لا د نفی لپاره. لکه: لا سرور دائم.

( لا ) حرف د استعمال ډیر حالات لري چې انشاءالله په دریم باب کې چې د حرف خاص بحث دی پوره او تفصیلي بحث وشي.

۳. د ( اِنَّ ) او ( لاَ ) خبر: اقسام یې په لاندې ډول دي:

الف _ ظاهر اسم: لکه: انَّ زیداً قائم.

ب _ شبه جمله ( ظرف یا جار او مجرور ) لکه: اِنَّ الرَاحَةَ بَعْد التَعَبِ.

بَعْد التَعَبِ شبه جمله ده چې له ظرف او مضاف الیه څخه جوړه شوې ده. لارجل فی الدار ( فی الدار _ جار او مجرور ).

ج ـ اسميه جمله يا فعليه جمله:

لکه: اِن الصباح ضؤه شديد ( ضؤه شديد اسميه جمله د اِنَّ خبر شوه.

ليت الشباب يعود يوما، يعود يوما: فعليه جمله د ليت خبر شوه.

په څلورم باب کې ( جمله د اعراب د موضوع له لحاظه ) دا مطلب تشريح کيږي.

۴. د اِنَّ د خبر د تقدم جواز:

کله چې د اِنَّ خبر شبه جمله او اسم يې معرفه وي، د خبر تقدم يې پر اسم باندې جائز دی لکه: اِنّ في التأني السلامة. چې ( في التأني: د اِنَّ مقدم خبر او ـ السلامة د اِنّ وروستئ اسم دی.

- د اِنّ د خبر د تقديم وجوب:

الف ـ کله چې د اِنَّ خبر شبه جمله او اسم يې نکره وي لکه:

انّ مع العسر يسراً ( مع العسر: د اِنَّ خبر او يسراً د اِنَّ مؤخر اسم دی.

ب ـ کله چې د اِنّ په اسم کې ضمير يوه جزء دی اسم د خبر د اِنَّ ته راجع شوئ وي. لکه: ان في الدار صاحبها ( في الدار: مقدم خبر دی. صاحبها: د اِنَّ مؤخر اسم چې له هغه سره د ( ها ) ضمير متصل شوئ چې خبر ته راجع شوئ دی.

۵. کله چې له اِنَّ او د هغه له اخواتو سره ( ما ) متصله شي چې د هغوی د عمل مانع ګرځي او اسم يې مرفوع پاتې کيږي. يواځې په ليت که هم رفع او نصب د اسم يې جائز دی.

لکه: انما الامُ الا خلاقُ ما بقيت

کانما القذائف قصف الرغود.

ليتما الامتحانُ سهل ــ يا ــ ليتما الامتحانَ سهل.

٦. د اِنَّ همزه په لاندې ځايونوکې مکسوره وي:

الف ــ د کلام په اول کې لکه: اِنَّ العدل اساس الحکم.

ب ــ وروسته له قول څخه لکه: قال المتهم اِنَّی بریءٌ ( قل اِنَّ هدی الله هو الهدی ).

ج ــ وروسته له قسم څخه لکه: والله اِنَّ النصر قریب.

د ــ د صله او موصول د جملې په اول کې لکه: جاء الذی اِنه ناجح.

هــ ــ د حاليه جملې په لومړي سر کې لکه: قابلته و إنّه مستعد للسفر.

و ــ وروسته له حيث څخه راشي لکه: ليسکن الناس حيث اِنَّ الراحة موفورة.

يادونه:

د اِنَّ د يوه نون حذفول کله چې له ( نا ) سره متصل شي د تخفيف لپاره جائز دی لکه: ( يايهاالناس اِنّا خلقناکم من ذکر و انثیٰ ).

٧. أنَّ: په هغه ځای کې چې ( أن ) له اسم او خبر سره مصدر ته مؤل شي د هغه همزه مفتوحه وي او په دې صورت کې واجب دی چې ( أنّ ) له خپل اسم او خبر سره مسبوق په يوه جمله اوسي لکه:
سرنی انک نجحت او صحيح دی چې وويل شي: سرنی نجاحک.
أتمنی أنّ القمر طالع که ووايو: اتمنی طلوع القمر عين معنی افاده کوي.
عَجِبْتُ من أنک قائم په معنی د عجبت من قيامک.

د مصدر په اړه پوره معلومات به د دې کتاب په دوهم جزء کې راشي.

٨. دا جائز دی چې د اِنّ په خبر کې مفتوحه لام چې د تاکيد لپاره دی راوړل شي لکه: اِن الله لقوی عزيز ــ اِن زيدًا لقائم.

دا لام يواځې د اِنَّ په خبر داخليږي نه د نورو مشبه بالفعل په حروفو. همدا ډول جائز

دی چې همدا د تاکید لام د اِنّ په اسم داخل شي په هغه صورت کې چې د اِنّ خبر پر اسم مقدم شي لکه: ( و اِن لک لا جرًا غیر ممنون ).

## الفاعل

۱. فاعل هغه مرفوع اسم دی چې وروسته له معلوم فعل ذکر کیږي او د فعل په کونکې او یا پر هغه ذات دلالت کوي چې په نوموړي فعل متصف وي.
لکه: قام الرجلُ. ( الرجل فاعل مرفوع په ضمه ).
ترافع المحامیان. ( المحامیان: فاعل مرفوع په الف ځکه چې مثنیٰ دی ).
قاتل المناضلون. ( المناضلون: فاعل مرفوع په واو ځکه جمع مذکره سالمه دی ).
تقرر اعلان نتیجه الامتحان. ( اعلان: فاعل په ضمه.

۲. د فاعل اقسام:

الف _ کله فاعل اسم معرب وي لکه چې په یاد شوو مثالونوکې مو ولیدل.
ب _ کله مبنی اسم وي لکه: ظاهر ضمیر یا مستتر ضمیر، اسم اشاره، اسم موصول لکه: جلست ( تاء: ضمیر ظاهر ( بارز ) فاعل مبنی د رفع په محل کې.
الرجل حضر ( الرجل: مبتدأ مرفوع په ضمه حضر ماضي فعل اوفاعل یې هغه مستتر ضمیر دی چې تقدیریږي ( هو ) دی او جمله فعل اوفاعل سره په محل د رفع کې خبر لپاره د مبتدأ.

نجح هذا الطالب. ( هذا اسم اشاره مبنی په محل د رفع د فاعل کې.
جاء الذی کتب. ( الذی موصول اسم مبنی په محل د رفع د فاعل کې.
د یاد شوي مطلب پوره شرح په دوهم فصل د مبنی په بحث کې وړاندې کیږي.

ج _ کله فاعل مؤل مصدر دی أن او فعل څخه یا له اِن اود هغه له اسم او خبر څخه وي. لکه: ینبغی أن تفوز: مؤل مصدر له أن او فعل څخه ( ینبغی فوزک )

سرنی انک نجحت. مؤل مصدر له اِن او د هغه له اسم او خبر څخه په معنیٰ دی.

سَرَّنِی نجاحک. په دې جمله کې مؤل مصدر له اِن او د هغه له اسم څخه فاعل واقع شوئ دی.

د دې موضوع تفصیل د مؤل مصدر په بحث کې پوره توضیح کیږي.

۳. کله چې فاعل مثنیٰ یا جمع وي فعل یې همیشه مفرد راځي لکه:

حضرالمدرس _ حضرالمدرسان _ حضرالمدرسون _ حضرالمدرسات.

۴. کله چې فاعل مؤنث وي له فعل سره یې د تانیث تاء یوځای او ملحق کیږي. که چیرې ماضي فعل وي ساکنه تاء په آخر د فعل کې او که فعل مضارع وي متحرکه تاء په اول د فعل کې زیاتیږي لکه: جاءت هند _ تأتی فاطمة.

۵. په لاندې ځایونوکې د تانیث تاء راوړل واجب دي:

الف _ کله چې فاعل اسم ظاهر ( نه مضمر ) حقیقي مؤنث او له فعل څخه غیر منفصل وي. حقیقي مؤنث هغه اسم ته ویل کیږي چې د یوه حیوان یا انسان نوم وي. لکه: سافرت فاطمه _ تطیرالحمامة.

ب _ کله چې فاعل ضمیر مستتر وي حقیقي مؤنث یا مجازي مؤنث ته راجع شوئ وي ( مجازي مؤنث هر هغه اسم دی چې د حیوان نوم نوي مگر عربو هغه په مؤنث کې حساب کړئ وي. لکه: منضدة او الشمس ).

لکه: زینب حضرت ( د حضرت فاعل هغه مستتر ضمیر دی چې حقیقي مؤنث ته یعنې زینب ته راجع شویدي ).

الشمس طلعت. د طلعت فاعل هغه مؤنث ضمير دی چې الشمس ته راجع شويدی او هغه مجازي مؤنث دی.

٦. د فعل تانيث له مؤنث فاعل سره په لاندې ځايونوکې جائز دی:

الف _ کله چې فاعل حقيقي مؤنث وي خو د فاعل اوفعل تر منځ فاصله وجود ولري. لکه: سافرت أمس فاطمة. جائز دی چې سافر امس فاطمة بدون له ( تا ) څخه وويل شي.

که چېرې فاصل د فعل او فاعل تر منځ د ( الا ) حرف وي راجح خبره دا ده چې فعل بدون له تاء څخه ذکر شي. لکه: مانال الجائزة الا الفائزة. او مانالت الجائزة الا الفائزة هم جائز دی خو بدون له تاء څخه بهتر دی.

ب _ کله چې فاعل اسم ظاهر مجازي التانيث دی د تاء راوړل او يا نه راوړل دواړه يو ډول دي. لکه: تطلع الشمس يا يطلع الشمس همدا ډول طلعت الشمس او يا طلع الشمس.

ج _ کله چې فاعل جمع تکسير وي. لکه: حضرت القضاة يا حضر القضاة.

٧. دا شراط نه دی چې فاعل هر کله له خپل فعل سره متصل ذکر شي بلکې جائز دی چې يو فاصل يا زيات، د فعل او فاعل تر منځ واقع شي.

لکه: اعجبنی فی الحديقة ازهارها ( ازهارها د اعجبنی د فعل مرفوع په ضمه فاعل دی چې د فعل او فاعل تر منځ شبه جمله ( فی الحديقة ) فاصل واقع شوئ دی ).

په ډيرو ځايونوکې مفعول به له فاعل څخه مخکې ذکر کيږي د فعل او فاعل تر منځ فاصل واقع کيږي. لکه: يجنی القُطُنَ الفلاحُ، چې ( القطن مفعول به منصوبه په فتحه او الفلاح: مرفوع په ضمه عامل دی چې د دې موضوع تفصيل به د مفعول په بحث کې ذکر کيږي.

۸. يادونه: کله چې په کلام کې مبني للمعلوم فعل موجود وي، د فاعل موجوديت په جمله کې حتمي دی او د هغه فعل د فاعل د پيژندلو لارې دا دي چې د ذوی العقولو لپاره د اسم استفهام ( من ) او د غير ذوی العقولو لپاره د ( ماذا ) کلمه مخکې له فعل څخه راوړل کيږي.

لکه: تکلم الخطيب بشجاعة چې وپوښتل شي: من تکلم؟ په ځواب کې ويل کيږي ( الخطيب ) نو خطيب فاعل دی.

حفر المؤتمر اربعون مندوبا. پوښتنه کيږي، من حفر؟

په ځواب کې ويل کيږي ( اربعون ) نو اربعون فاعل دی.

أوافق على هذا الرأی ( من يوافق؟ ) په ځواب کې ويل کيږي.

( انا ) نو مستتر ضمير په ( اوافق ) کې د هغه فاعل دی.

تقرر تاجيل النتيجه ( ماذا تقرر؟ ) تاجيل النتيجه. نو تاجيل النتيجه فاعل دی.

۹. کله فعل حذف او فاعل ذکر کيږي:

لکه: کل عام و انتم بخير، چې په اصل کې جمله دا ډول دی: يقبل کل عام و انتم بخير، يعنې هر کال دې راشي په داسې حال کې چې تاسو روغ ياست.

کل د محذوف فعل فاعل دی چې هغه يقبل دی.

۱۰. قاعده داسې ده چې فاعل وروسته له يوه فعل څخه راځي لکه څنګه مو چې په تيرو مثالونو کې وليدل. خو هر يو مصدر د اسم فاعل دی صفت مشبه چې د فعل د معنىٰ متضمن دی په بعضو جملو کې د فاعل رافع کيدای شي لکه په لاندې جمله کې:

جاء الرجل الفاضل أخوه _ ( أخو ) د الفاضل فاعل دی چې عامل د رفع يې همدا اسم فاعل دی نه کوم بل فعل.

دخلت بستاناً جميلا منظرهُ _ منظر مرفوع فاعل دی چې عامل د رفع يې جميلا دی او دا صفت مشبه دی.

د دې موضوع پوره تفصيل انشاءالله د مشتقاتو په مبحث کې په تفصيل راشي.

**نائب الفاعل:**

١. نائب فاعل هغه مرفوع اسم دی چې وروسته له مبني للمفعول فعل څخه ( مجهول فعل ) راځي. دا اسم چې عمدتاً په اصل کې مفعول به دی خو د مبني للمفعول فعل يعنې مجهول فعل موجوديت چې د فاعل د وجوبي حذف سبب ګرځي، دا مفعول به، نائب فاعل ګرځي.

لکه هزم العدو _ چې ( العدو ) نائب فاعل او مرفوع دی. چې اصل جمله داسې کيږي. هزم جيشنا العدو. جيشنا چې فاعل دی کله چې ذکر ته يې ضرورت نه وه نو حذف شه او مفعول به ( العدو ) د فاعل قائم مقام وګرځيد او د هغه اسناد د ته تحول وکړ.

په دې ځای کې د يادولو وړ دی چې ووايو: د جملې ارکان درې دي:

مسند اليه، مسند او اسناد. او هر يو د کلام عمده جزء يا مفيده جمله بلل کيږي. خو نور اجزاء د جملې لکه: مفاعيل خمسه، حال، تمييز، ظرف، جار او مجرور او توابع يا د فعل او اسم متعلق د فعل په معنیٰ دی. او يا هم د اسم د معنیٰ بيانونکي دي ( مُبيّن ).

٢. فعل يا متعدي وي چې يو مفعول او يا څو مفعول غواړي او يا فعل لازمي دی چې يواځې معنیٰ يې په فاعل تماميږي.

الف _ کله چې فعل یوه مفعول ته متعدي شي فاعل حذفیږي، او مفعول به د فاعل نائب ګرځي خو کله چې فعل مبني للمفعول شي.

ب _ کله چې فعل له یوه څخه زیات مفاعیل ولري، فاعل حذفیږي او فعل مجهول صیغې ته اوړي او لومړی مفعول به، نائب فاعل ګرځي او مرفوع ګرځي او نور مفاعیل په خپل حال منصوب پریښودل کیږي لکه:

اعطی الناجح جائزة، الناجح نائب فاعل مرفوع په ضمه جائزة د وهم مفعول به په خپل حالت منصوب پر فتحه دی.

د فاعل له حذف څخه مخکې جمله په دې ډول وه:

اُعْطِیَ المعلم الناجح جائزة، کله چې فاعل ( المعلم ) حدف شه او فعل په مبني للمفعول صیغه بدل شه او لومړی مفعول د جائزة، لکه مخکې په خپل حال پاتې شه.

ج _ کله چې لازمي فعل مبني للمفعول وګرځول شي واجب دی چې نائب فاعل یې یا مصدر، یا متصرف ظرف او یا جار او مجرور وي لکه:

یتنزه فی الحدائق. فی الحدائق جار او مجرور خو کله چې ( الناس ) فاعل وه او حذف شه فعل مبني للمفعول شه جار او مجرور نائب فاعل او د رفع په محل کې راغی.

۳. کله چې د فعل فاعل ذکر شي مبني للفاعل ورته ویل کیږي او مبني للمعلول ځکه دی چې فاعل یې معلوم او مذکور وي. او نائب فاعل ته مبني للمفعول یا مجهول ځکه ویل کیږي چې مفعول د فاعل ځای نیولی او فعل ته مجهول ویل کیږي اوفاعل یې مجهول دی.

۴. د فعل شکل مبني للمفعول ته اوړي:

- ماضي فعل: اول یې مضموم او ماقبل آخر یې مکسور کیږي. لکه:

صَنَعَ النجار الاثاث. صُنِعَ الاَثَاثُ. اكرم المعلم الفائز. اُكْرِمُ الفائزُ.

- کله چې ماضي فعل په _ ت، شروع شوئ وي _ تا _ او دوهم حرف د فعل دواړه مضموم ګرځي. لکه: تسلمت سعاد الجائزة چې مجهول فعل د ( تُسُلِّمت الجائزة ).
- کله چې ماقبل آخر د ماضي فعل الف وي. په ( یا ) بدلیږي او له هغه څخه مخکې حرف یې مکسور ګرځي. لکه د ( قال الشاهد الحق ) مجهول ( قیل الحق ) دی.

او مضارع فعل:

- اول یې ( د مضارعة حرف ) مضموم او ماقبل آخر یې مفتوح کیږي. لکه: تسُرُّ العینین. تُسرِالعینان ویل کیږي. او یشاهد الناس اللاعبین، یشاهد اللاعبون ویل کیږي.
- کله چې ماقبل آخر حرف ( فعل مضارع یا ( یاء ) او یا ( واو ) وي په الف بدلیږي لکه په دې مثال کې: یبیع الفلاح القطن: یباع القطن ویل کیږي همدا ډول په یصوم المسلمون رمضان _ یُصَامُ رمضان ویل کیږي.

۵. نائب فاعل پنځه ډوله دي:

الف _ معرب اسم لکه څنګه چې په تیرو مثالونوکې مو ولیدل.

ب _ مبني اسم: ضمیر ( بارز _ مستتر ) اسم اشاره او اسم موصول لکه:

فوجئت بزیارتک، فُوْجئتُ: تاء بارز ضمیر مبني په محل د رفع دی نائب فاعل کې.

العدوهُزِم. العدو مبتدأ مرفوع په ضمه هُزِمَ فعل ماضي مبني ضمیر په کې مستتر چې تقدیر یې ( هو ) دی نائب فاعل.

یحاکم هذا المذنب. هذا د اشارې اسم مبني په محل د رفع کې نائب فاعل.

کوفی من نجح. من اسم موصول مبني په محل د رفع د نائب فاعل.

د دې موضوع پوره څیړنه به د مبني اسم په بحث کې وشي.

ج ـ مؤول مصدر له ( أن او فعل یا أن او د هغه د اسم و خبر څخه ) جوړیږي.

لکه: عُرِف انک مجتهد یعنې عرف اجتهادک. انک مجتهد د مصدر په تأویل په محل د رفع د نائب فاعل دی عُرِفَ کې.

د ـ صریح مصدر، متصرف ظرف یا جار او مجرور په داسې کال کې نائب فاعل کیدای شي چې فعل لازمي وي او مفعول به ونلري.

لکه: أقبل اِقبالٌ شدید. اقبال: مصدر مؤل نائب فاعل مرفوع په ضمه دی.

شهرت لیلة جمیلة ـ لیلة: ظرف او نائب فاعل دی.

٦. داسې لیدل کیږي په هر کلام کې چې مجهول فعل ولیدل شي نو د نائب فاعل موجودیت د دې ډول فعل لپاره ضروري دی او نائب فاعل لکه څنګه مو چې تیرشویو مثالونوکې ولیدل چې یا معرب اسم وي، یا مبني، مؤل مصدر یا صریح جار او مجرور او یا ظرف وي.

٧. کله چې نائپ فاعل مثنیٰ او یا جمع وي فعل په خپل حالت مفرد پاتې کیږي. لکه: ضُرِبَ الولد، ضرب الولدان، ضرب الاولاد، ضربت البنات.

٨. د فعل تأنیث لکه څرنګه چې له فاعل سره وي په نائب فاعل کې هم همدا ډول دی. لکه: یُقبَتْ فاطمة بالزهرا. نائب فاعل حقیقي مؤنث او له فعل سره متصل وي نو د فعل تانیث واجب دی.

سفینة الفضاء اُطلقت. نائب فاعل داسې ضمیر دی چې مؤنث ته راجع شوئ نو د فعل تانیث واجب دی.

أنهیت أو أنهی الحرب. الحرب مجازي مؤنث او نائب فاعل دی نو د فعل تذکیر او

تانيث دواړه جائز دي.

أقيم أواقيمت المصانع. مصانع جمع مكسر نائب فاعل دی نو تانيث د فعل يې جائزدی.

٩. دا ضرور نه ده چې نائب فاعل مستقيماً وروسته له فعل څخه راشي ځکه چې کله نا کله د فعل او نائب فاعل تر منځ يو فاصل يا زياد فواصل راتلای شي. لکه: يقصد بالاجر کل يعطی للعامل لقاء عمله. يًقصَدُ مجهوله مضارع فعل

دی، بالاجر _ جار او مجرور، کلٌ _ نائب فاعل مرفوع په ضمه دی.

١٠. قاعده داسې ده چې نائب فاعل وروسته له مجهول فعل څخه بايد راشي خو څرنګه چې اسم مفعول د مجهول فعل متضمن دی نو کله کله د مجهول فعل عمل کوي نو نائب فاعل، مرفوع کولای شي.

لکه: استقلال العامل المطلوب نقله. نقله نائب فاعل دی اسم مفعول ( المطلوب ) دی.

دا بحث به انشاءالله د مشتقاتو په شرح کې راشي.

## د مرفوع اسم تابع

مخکې مو هغه حالات چې اسم په هغه کې مرفوع کيږي توضيح کړ، چې دا ډول حالات د اسم رفع بالاصالة وه.

همدا ډول اسم د مخکيني اسم په تبعيت هم کولای شي چې مرفوع شي چې په دې حالت کې دوهم اسم ته تابع ويل کيږي.

**توابع:** هغه الفاظ دي چې د ماقبل اسم د اعراب تابع دي او د ماقبل خپل اسم په تبعیت مرفوع، منصوب او مجرور ګرځي چې په لاندې ډول دي:

## ا. نعت:

نعت هغه تابع دی چې پر هغه صفت چې ماقبل کې دی دلالت کوي. لکه: جاء الرجل الفاضل، الفاضل د الرجل نعت دی نو څرنګه چې الرجل مرفوع دی الفاضل هم د هغه په تبعیت مرفوع دی.

- نعت په دوه ډوله دی:

• حقيقي نعت: هغه لفظ دی چې په هر هغه صفت دلالت کوي کوم چې په خپله متبوع کې دی. لکه: جاء الرجل الفاضل.

• سببي نعت: هغه لفظ دی چې پر هغه صفت دلالت کوي کوم چې هغه صفت پا بل اسم کې دی چې هغه اسم په متبوع پورې اړه لري. لکه: جاء الرجل الفاضل آخوه.

- حقيقي نعت په تعريف، تذکير، عدد او نوع کې لکه خپل متبوع داسې دی. لکه: جاء الرجل الفاضل _ جاء الرجلان الفاضلان _ جاء السيدتان الفاضلتان _ جاء الرجال الفاضلون _ جاءت السيدات الفاضلات.

کله چې منعوت غير عاقل جمع وي جائز دی چې حقيقي نعت يې مؤنث مفرد يا مؤنثه جمع وي لکه: الجبال العالية او العاليات.

خو سببي نعت هر کله مفرد وي او له خپل متبوع سره په تعريف او تنکير کې مطابقت کوي او په تذکير او تانيث کې له خپل مابعد سره موافق وي. لکه: جاء

الرجل الفاضل أخوه _ جاء الرجل الفاضل اخواه _ جاء الرجلان الفاضل اَخواهما _ جاء الرجل الفاضلات اخواتهم _ جاءت سيدات فاضله اخواتهن.

- حقيقي نعت په درې ډوله دی:

الف _ ظاهر اسم: لکه: القاهرة مدينة عظيمة _ عظيمة نعت دی.

ب _ شبه جمله: ( ظرف يا جار او مجرور ) لکه: للحق صوت فوق کل صوت.

فوق: د صوت نعت دی.

تذاع الحانٌ من روائع النعم ( من روائع: جار او مجرور نعت دی دالحان لپاره.

ج _ جمله که اسميه وي يا فعليه خو جمله يوائې د نکره اسم لپاره نعت راتلای شي. لکه: مضى يوم برده قارص. ( برده قارص ) اسميه جمله ده چې د يوم لپاره صفت واقع شوئ او يوم نکره دی.

هذا عمل يفيد: فعليه جمله د عمل لپاره نعت واقع شوېده.

د دې خبرو مفصل بحث به د جملې او د هغې د اعرابي محل په درس کې وشي.

## II. عطف:

١. عطف هغه تابع دی چې د هغه او د هغه د متبوع تر منځ يو له حروفو د عطف واقع شوئ وي. لکه: نجحت سعادو اختها. د أخت کلمه مرفوع دی ځکه چې په سعاد باندې عطف دی او سعاد د فاعل دی او مرفوع.

٢. د عطف حروف ( ٩ ) دي: واو، فاء، ثم، او، ام، لا، لکن، بل او حتی.

د دې حرفونو لنډ تفصيل په لاندې ډول دی:

واو: يوائې په جمع دلالت کوي. لکه: جاء محمد و حسن و سعيد.

فاء: په ترتيب او تعقيب دلالت کوي. لکه: دخل المتهم فالمحامی.

ثم: په ترتيب او تراخي دلالت کوي.لکه: مات الرشيد ثم المأمون.
او: په تخيير يا په شک دلالت کوي. لکه: نقل الخبر محمد او علی.
أم: د طلب په تعين دلالت کوي. لکه: اکتب هذا المقال عمرو أم محمود؟
لا: په نفي د حکم له معطوف څخه دلالت کوي. لکه: نضج البطيخ لا العنب.
لکن: په استدراک دلالت کوي. لکه: مانجح علی لکن أخوه.
بل: له سابق حکم څخه په عدول دلالت کوي. لکه: ظهر علی الامواج ذورق بل باخرة.
حتی: په غاية ( نهايت ) دلالت کوي. لکه: فرالعدو حتی القائد.
**يادونه:**
لکه څنګه چې مو وويل ثُمَّ د ثاء په ضمه د عطف حرف دی او کله په آخر کې يې مطوله مفتوحه تاء زياتيږي لکه ( ثمت ) چې ابن مالک په بيت کې راغلي:

أفعِله، افعُل ثم فعَله ثمت افعال، جموع قله

خو ثَمَّ په فتحه د ثاء هغه ظرف دی چې بعيد مکان ته د هغې په واسطه اشاره کيږي.
او د هناک په معنیٰ دی او کله يې آخر کې مربوطه تاء راوړل کيږي:
لکه: ( ثمة شروط عديدة للنجاح ) يعني هناک شروط عديدة للنجاح.
### III. تاکيد:
تاکيد هغه تابع دی چې د هغه توهم د رفع لپاره چې د کلام له احتمال څخه د اوريدونکي ( سامع ) ذهن کې منځ ته راتلای شي کارول کيږي او په دوه ډوله دی.
الف _ لفظي تاکيد: هغه تاکيد دی چې د مؤکد لفظ په تکرار سره اداء کيږي.
لکه: جاء الوزير الوزير. الحرية الحرية اغلی مطلب.
ب _ معنوي تاکيد په لاندې الفاظو اداء کيږي:

نفس، عين، کل، جميع، عامة، کلا او کلتا.

او کله چې دا الفاظ مؤکد واقع کیږي باید له غیر سره متصل لکه مؤکد مطابق وي.

په لنډه توګه دا الفاظ څېړل کیږي.

- نفس، عین:

دا دواړه لفظونه د مفرد د مؤکد سره مفرد او له مثنی او جمع مؤکد سره په وزن د (اَفْعُلُ) راځي. لکه: القی الشاعر نفسه قصیدته، حضرت فاطمة عینها، جاء الرجالان انفسهما، جاءت المرءتان أعینهما، جاء الرجال اعینهم، جاءت النساء انفسهن.

- کل، جمیع، او عامة:

په دې درې لفظونوکې مؤکد د ټولو افرادو او اجزاءو د شمول او احاطې لپاره تاکید راځي. لکه: جاء الرکب کله، الامة العربیة جمیعها قلب واحد، حضرت القوم عامتهم. په دې ډول جائز نه دی چې وویل شي: جاء محمود کله.

د یادونه وړ ده چې په ډیرو ځایونو کې د تاکید د تقویې لپاره وروسته له کلمه د (کل) څخه د ( أجمع ) کلمه راوړل کیږي.

خو اجمع په مذکر مفرد کې جمعاً په مفرد مؤنث کې اجمعون او اجمعین د مذکر جمع او جُمَعْ د مؤنثې جمع لپاره کارول کیږي. لک: جاء الرکب کله اجمع، هیت المدینة کلها جمعاء، حضر الرجال کلهم اجمعون، جاءت النساء کلهن جمع. (فسجد الملائکة کلهم اجمعون ).

او کله ( اجمع ) بې لدېنه چې مسبوق په ( کل ) وي ذکر کیږي. لکه: جاء الرجال اجمعون.

- کلا او کلتا:

( کلا ) د مذکر مثنیٰ په تاکید کې او کلتا د مؤنث مثنیٰ په تاکید کې کارول کیږي او کله چې دا دواړه لفظونه په قطعي ډول تاکید واقع شي او لازمه ده چې ضمیر ته مضاف وي. لکه: جاء الرجلان کلاهما، الکاتبان کلتاهما بارعتان.

**یادونه:**

د ( نفس، عین، کل، جمیع، عامة، کلا او کلتا ) کلیمې کله چې وروسته له مؤکد څخه او له ضمیر سره متصل مطبق د مؤکد ذکر شي لکه څنګه چې مخکې ذکر شوي، په اعراب کې د خپل ماقبل تابع دي.

خو کله چې دا کلمې په کوم بل ځای کې د جملې ذکر شي نو د دوی د موقعیت پر اساس اعراب ورکول کیږي. لکه: ( فیهما عینان تجریان ) عینان مؤخره مبتدأ او مرفوعه په الف ځکه چې مثنیٰ ده.

جاء نفس الرجل. نفس: فاعل مرفوع په ظاهره ضمه.

کل امری بما کسبت رهین. کل: مبتدأ مرفوع په ظاهره ضمه.

حضر جمیع الاعضاء. جمیع: فاعل مرفوع په ظاهره ضمه.

کلا الرجلان حاضران. کلا: مبتدأ مرفوع په مقدره ضمه په الف.

IV. بدل:

بدل هغه تابع دی چې ذکر یې مقصود وې نه د ده متبوع، او متبوع یې یواځې د تمهید په ډول د هغه ( بدل ) د ذکر لپاره راوړل کیږي. لکه: جاء احمد أخوک.

او بدل په څلور ډوله دی:

١. بدل کل: چې مطابق د نیت ویل کیږي او خپل متبوع سره مساوي دی. لکه: په تیر مثال کې.

۲. بدل بعض: دا ډول بدل د خپل متبوع ( مبدل منه ) جزء وي. لکه: طبع الکتاب جزءه الاول.

۳. بدل اشتمال: دا هغه شی دی چې مبدل منه پرې مشتمل دی. لکه:تسرني الشارع نظافته.

۴. بدل مباین: چې په دوه ډوله دی: بدل اضراب او بدل غلط.

الف _ بدل اضراب چې بدل بدا ( ظهور ) هم ورته ویل کیږي: هغه دی چې متکلم غواړي یو شی ذکر کړي وروسته بیا څرګند شي چې یو بل شی هم د یادولو وړ دی او هغه هم ذکر کړي. په دې بدل کې تابع او متبوع دواړه د متکلم مقصود دي. لکه: أکل خبز لحم علی هذه المائدة. متکلم په دې مائده باندې د ډوډی د خوړلو د بیان قصد وکړ او وروسته د خبز د کلمې له ویلو څخه په نښه ورته معلومه شوه چې د غوښې خوړل هم په دې مائده باندې باید ذکر شي چې داسې یې وکړه.

ب _ بدل غلط: د متکلم ژبه د اشتباه له مخې په دې بدل وخوځول شي او په نښه خپلې غلطی ته ورپام شي او د هغه بدل ذکر کړي. لکه: جاءت طالب استاد.

**یادونه:**

په بدل بعض له کل څخه او بدل اشتمال کې واجبه ده چې دا دواړه په ضمیر باندې متصل وي چې د هغه مرجع مبدل منه دی. لکه څنګه مو څه په دې مثالونو کې ولیدل: طبع الکتاب جزءه الاول. تسرنی الشارع نظافته.

# عطف بیان

عطف بیان داسې تابع دی لکه صفت په واضح کولو د خپل متبوع کې خو عطف بیان یواځې جامد اسم وي. لکه: قال ابو حفص عمر: کنا اذل قوم فاعزنا الله بالاسلام فإن طلبنا العزة فی غیر الاسلام فاذلنا.

عمرُ جامد اسم دی او عطف بیان واقع شوئ دی ځکه چې د فاعل تابع واقع شوئ مرفوع دی او د رفع علامه یې غیر منونه ضمه ده ځکه چې غیر منصرف دی.

عطف بیان لکه صفت په اعراب، عدد، تذکیر، تانیث، تعریف یا تنکیر کې مطابق د خپل متبوع وي. نو لدې کبله هر عطف بیان بدل کیدای شي خو هر بدل عطف بیان نشي کیدای ځکه چې هر بدل په یاد شوو صفاتو کې ضرور نه دی چې مطابق د خپل متبوع اوسي.

یادونه:

دا چې وموویل څه عطف بیان کولای شي بدل ووسي هدف مو بدل کل ( مطابق ) دی.او بعضې موارد له دې خبرې څخه مستثنیٰ دي په دې معنیٰ چې عطف بیان هلته نشي کولای چې بدل واقع شي.

لکه: یا غلام محمودا: په دې ترکیب کې ( محمودا ) د غلام عطف بیان دی او څرنګه چې غلام د نداء له حرف ( یاء ) سره متصل شوئ مبني پر ضمه د اما په محل د نصب کې قرار لري چې په دې اساس متبوع یې باید منصوب وي چې محموداً په همدې ډول دی. خو څرنګه چې په بدل کې عامل حکما مکرر نه شمېرل کیږي نو محمود هم د نداء حرف سره متصل ارزول کیږي. باید چې مبني پر ضمه وي کله چې په پورتني مثال کې منصوب تلفظ شوئ ده نو د بدل والي صلاحیت نو

ندی پکې پاتې تر څو چې یاغلامُ محمودُ ووایو چې په دې حال کې عطف بیان نشي کیدای.

## منصوب اسم

**لومړی: د اسم د نصب علامې:**

- فتحه: په مفرد اسم او مکسر جمع کې د نصب علامه ده.لکه:

قاد السائق السیارة. السیارة مفرد منصوب او د نصب علامه یې فتحه ده.

شرح المدرس النصوص. النصوص مکسر جمع منصوبه بنا پر مفعولیت او د نصب علامهٔ یې فتحه ده.

- یاء: یاء د تثنیه او مذکره سالمه جمع کې د نصب علامه ده. دا یاء د اسم جزء ندی یواځې د تثنیه او جمع د علامې په ډول د اسم سره زیاتیږي. د تثنیه یاء ماقبل مفتوع او د جمع د یاء ماقبل مکسور وي. لکه:

قابلت المدرسین ( مذکره مثنیٰ ).

کان اللاعبون متنافسین ( مذکره جمع ).

- کسره: په جمع سالم مؤنث کې کسره د نصب علامه ده. لکه:

رأیت الممرضات. ممرضات: جمع سالم مؤنث بنا پر مفعولیت منصوب دی او د نصب علامه کې د تاء کسره ده.

الف _ په اسماء خمسهؤ کې: أب، اخ .... لکه:

شاهدت اخاک. اخاک له اسماء خمسهؤ څخه دی چې د مفعولیت پر اساس په پورتني ترکیب کې منصوب دی او د نصب علامهٔ ( الف ) دی.

**یادونه:**

۱. **د نصب اصلي علامه ( فتحه ) ده او نورې علامې يې فرعي بلل شوي دي.**

۲. **معتل الآخر اسم په الف لکه ( فتی، مصطفی ... ) په مقدره فتحه پر الف منصوب دي. ځکه چې د فتحې لوستل یا نطق مشکل دی.**

## د اسم د نصب حالات

**اسم په یولسو حالتونو کې منصوب وي:**

۱. **د کان خبر.**
۲. **د اِنَّ اسم.**
۳. **مفعول به.**
۴. **مفعول مطلق.**
۵. **مفعول له.**
۶. **مفعول معه.**
۷. **مفعول فيه.**
۸. **حال.**
۹. **مستثنیٰ.**
۱۰. **منادي.**
۱۱. **تمييز.**

**همدا ډول د منصوب اسم تابع هم منصوب وي.**

د کان خبر:

۱. د کان خبر، د مبتدأ هغه خبر دی چې یو له اخواتو د کان څخه له دوی څخه مخکې ذکر شي. لکه: کان المعلم حاضراً. حاضراً: د کان خبر او منصوب په فتحه دی.

ظل القضات عادلین. عادلین: د ظل خبر او په یاء منصوب دی ځکه چې جمع سالم مذکر دی.

۲. د کان خبر په لاندې ډول دی:

الف _ ظاهر اسم لکه په پورتنیو مثالونو کې مو چې ولیدل.

ب _ شبه جمله د ظرف یا جار او مجرور. لکه: اصبح الظل فوق الازهار. فوق الازهار: مضاف ظرف شبه جمله د اصبح خبر په محل د نصب کې.

اضحی السمک فی الشبکة. فی الشبکة جار او مجرور شبه جمله په محل د نصب کې خبر د اضحی.

ج _ اسمیه یا فعلیه جمله:

لکه: کان الشتأ برده شدید. برده شدید: اسمیه جمله د خبر د کان په محل د نصب کې.

ما انفک الحزین یبکی. یبکی فعلیه جمله د خبر د ماانفک په محل د نصب کې.

د دې موضوع پوره تفصیل وروسته راځي ( ځلورم باب د جملې اعراب ).

۳. د کان د خبر تقدیم په اسم باندې جائز دی په هغه صورت کې چې اسم یې معرفه وي اوخبر یې شبه جمله. لکه: اصبح فی حیرة الکسلان و المهمل.

فی حیرة: جار او مجرور د کان خبر په محل د نصب کې، مقدم، او کسلان د اصبح اسم مرفوع په ظاهره ضمه_ مؤخر.

۴. کله چې خبر د کان شبه جمله او نکره اسم وي تقديم يې پر اسم د کان باندې واجب دی. لکه:

کان فی الکوب ماء. فی الکوب: جار او مجرور شبه جمله په محل د نصب کې مقدم وجوبي. ماء: د کان اسم مرفوع په ظاهره ضمه وجوبي ماخره ځکه چې نکره ده.

۵. په ډيرو حلاتوکې کيدای شي چې کان له خپل اسم سره يو ځای حذف شوئ وي او يواځې خبر ذکر شي. دا په هغه صورت کې چې خبر يې وروسته له

( اِن ) يا شرطيه ( لو ) څخه واقع شي. لکه: قيل ماقيل ان صدقا و اِن کذباً چې تقدير يې داسې کيږي:

اِن کان المقول صدقا و اِن کان المقول کذبا.

أريد منک ولو کلمة واحدة. چې تقدير يې و لوکان الرد کلمة واحدة دی.

يادونه:

کله چې دنفی حروف لکه ( اِن )، ( لا )، ( ما ) او ( لات ) په مبتدأ او خبر داخل شي د ليس په شان چې د کان له اخواتو څخه دی عمل کوي په دې معنیٰ جې مبتدأ مرفوع او خبر منصوب ګرځوي مګر په لاندې شرطونو:

الف _ په هغه صورت کې چې اسم يې پر خبر مقدم وي او کومه نفی چې دا حروف افاده کوي په ( لا ) نوي نقض شوئ. لکه: ماالحصون منيعة. ما: حرف نفی او لکه ليس عمل کوي او حصون د ما اسم مرفوع په ضمه. منيعه د ما خبر منصوب په فتحه.

ب ـ د ( لا ) په عمل کې علاوه له پورتني شرطه د لا د اسم او خبر نکره والی هم شرط دی. لکه: لاشارعٌ مزدحماً. لا: د نفی حرف، شارعٌ مرفوع په ضمه او مزدحماً د لا خبر منصوب په فتحه.

ج ـ لات په اصل کې نافیه لا ده او د تأنیث مفتوحه تاء پرې زیاته شوې ده. د دې حرف اسم اکثراً حذفیږي او خبر یې پاتې کیږي. لکه:

لات ساعة ندم. چې تقدیر یې: لات الساعة ساعة ندم.

## د اِنّ اسم

۱. پر هغه مبتدأ چې اِنَّ او یا نور مشبه بالفعل حروف چې عبارت دي له (اِنَّ، اَنَّ، کانَّ، لَیْتَ، لکنَّ، لعل ) څخه داخل شي د دې حروفو د اسم په نامه یادیږي. لکه: اِنّ الباب مفتوح. الباب: د اِنّ اسم دی او منصوب په فتحه دی.

کأن الطبیب أبوه. الطبیب: د کأن اسم او منصوب په فتحه دی.

- لیت العاملین محققون أهداف الانتاج. العاملین د لیت اسم دی او د نصب علامه یې یاء دی ځکه چې جمع مذکره سالمه ده.

حضرالطلاب لکنَّ محموداً لما یحضر. محمودا د لکنَّ اسم او منصوب دی او د نصب علامه یې منونه فتحه ده ځکه معرب، مفرد او منصرف دی.

- لعل عمرا یحضرالدرس. عمرا: د لعل اسم او منصوب په فتحه دی.

۲. څرنګه چې د اِنَّ او د هغه د اخواتو اسم په اصل کې مبتدأ وي دوی ته حروف ناسخه هم ویل کیږي ځکه چې رفع یې په نصب بدله کړې ده. لدې کبله د اِنَّ او د هغه د اخواتو اسم:

الف ـ یا معرب اسم وي لکه څنګه چې مو په پورتنیو مثالونوکې ولوستل.

ب ـ یا مبني اسم ( ضمیر، اسم اشاره، اسم موصول ). لکه: اِنک کریم. کاف ضمیر مبني په محل د نصب کې اسم د اِنَّ.

( اِنَّ الذین ینادونک من وراء الحجرات اکثر هم لا یعقلون ). الذین: موصول د اِنَّ اسم په محل د نصب کې اسم د ان ځکه چې مبني دی.

ان هذا أتملنافیک. هذا د اشارې اسم مبني په محل د نصب کې.

دا مطلب به په دوهم فصل کې د مبني اسم په بحث کې تشریح شي.

۳. ( لا النافیة للجنس ) په عمل کې د اِنّ له اخواتو څخه ګڼل کیږي. او د نفی د جنس معنیٰ دا دی چې د مبتدأ خبر له ټولو افرادو د جنس څخه نفی کوي او په دې ډول له ( لامشبه ) له لیس څخه چې یوائې واحد یا ډیر نفی کوي نه ټول جنس په کلي ډول توپیر لري.

لا النافیة للجنس د عمل شروط لکه عمل د اِنَّ په لاندې ډول دی:

- د ( لا ) اسم نکره وي.
- د ( لا ) اسم پر هغه متصل وي.
- او ( لا ) له حرف جر سره مقترنه نوي.

الف ـ د پورتنیو شرطونو د موجودیت په صورت کې که چیرې اسم د لا مضاف او یا شبیه له مضاف سره وي، منصوب کیږي. لکه:

د مضاف مثال: لا فاعل خیر مکروه. فاعل: د ( لا ) اسم نکره متصل له ( لا ) سره او ( لا ) د جر له حرف سره مقترنه ندی، نو منصوب دی او د نصب علامه یې فتحه ده.

لا طالعا جبلاً ظاهرٌ. طالعا: اسم دی ( لا ) منصوب ځکه چې لا غير مقترن له حرف جر سره دی او اسم يې نکره او له ( لا ) سره متصله دی او شبيه له مضاف سره دی. شبيه بالمضاف: هر هغه اسم ته ويل کيږي چې له بل هغه اسم سره متصل وي چې د ده د معنیٰ متمم وي خو مضاف اليه نوي لکه په پورتني مثال کې چې د طالعا معنیٰ په جبلاً باندې پوره کيږي خو مضاف اليه ندی.

ب ـ د لومړيو دريو شرطونو په موجوديت کې که چېرې د ( لا ) اسم مضاف او يا شبيه له مضاف سره نه وي په هغه حرف يا حرکت باندې مبني کيږي چې د نصب علامهٔ د اضافت يا شباهت په وخت کې وي. لکه: لارجل فی الدار. رجل اسم د لا مبني پر فتحه په محل د نصب کې.

لاحول ولاقوة اِلا بالله. حول: د اسم مبني پر فتحه په محل د نصب کې.

قوة: معطوف په حول مبني پر فتحه په محل د نصب کې.

لا فلاحين متهاونين. فلاحين د لا اسم مبني پر يا په محل د نصب کې.

يادونه!

کله چې د لا اسم معروفه وي عمل يې لغو کېږي او تکرايې لازمي دی.

لکه: لا القوم قومي و لا الاعوان اعوائې، لا حرف نفي، القوم: مبتداء مرفوع په ضمه، قومی د مبتداء خبر.

ب: کله چې (لا) له حرف جر سره مقترن شي مابعد يې مجرور ګرځي. لکه: يتقدم الجندی بلاخوفِ. بلا: باء حرف جر، لا د نفي حرف ماضي له لفظي عمل څخه خوفٍ مجرور په (با).

ج: کله چې د (لا) او د هغه په اسم کې کوم شئٍ فاصل واقع شي د (لا) عمل لغوه کېږي. لکه: لا فيها غول. لا د نفی حرف، فيها جار او مجرور مقدم خبر، غول مؤخر مبتداء مبتداء مرفوع په ضمه.

د: په هغه صورت کې چې د کلام له سياق څخه (لا النافية للجنس) خبر محذوف وپېژندل شي، جائز دی.

لکه: العلم لا شک اسس النهضة و لا شک في ذلک. لا شک فی ذلک د (لا) خبر دی چې حذف شوئ او د کلام له سياق څخه معلومېږي.

۴. (لاسيما) د لا النافية للجنس سره تعلق لري. لکه: احب الفاکهة و لاسيما البرتقال. له (سيما) سره متصل اسم يا مرفوع او يا مجرور وي او که نکره اسم وي منصوب هم راتلای شي د (لاسيما) او د هغه د وروستنۍ برخې اعراب داسې راځي: (لا) نافيه د جنس.

(سيی) د (لام) اسم منصوب په فتحه (ځکه چې مضاف دی)او د (لا) خبر په وجوبي ډول حذف شوئ ځکه چې عام فعل دی او له هغه په (موجود) تعبير کېږي.

(ما) درې حالته لري:

- (ما) زائده وي چې په دې صورت کې هغه اسم چې وروسته له (لاسيما) څخه واقع شوئ مجرور دی. لکه: البرتقال په پورتني مثال کې چې د (سيی) په اضافت مجرور شوی.
- او يا دا چې (ما) موصول اسم او مضاف اليه ده چې په دې حالت کې هغه اسم چې له: (لاسيما) څخه وروسته واقع شوی مرفوع دی چې په پورتني

مثال کې البرتقال په دې اعتبار چې د محذوف مبتداء خبر بلل کېږي مرفوع ویل کېږي چې تقدیر یې داسې دی: (احب الفاکهة لا سیما هو البرتقال).

- او یا دا چې هغه اسم چې له (لاسیما) څخه وروسته دی د تمیزتوب په خاطر منصوب او (ما) نکره د شیئ په معنیٰ کېږي.

## مفعول به

۱. مفعول به هغه اسم ته ویل کېږي چې د متعدي فعل په واسطه منصوب شوئ وي او د فاعل فعل د هغه پرمسمیٰ باندې واقع شوئ وي. لکه: یطلب العاقل العلم. (العلم) مفعول به د منصوب او د نصب علامهٔ فتحه دی.

تکرم الدولة المتفوقین... ( المتفوقین) مفعول به د منصوب او د نصب علامه د نبنهٔ یاء دی ځکه چې جمع سالم مذکر دی.

( احل الله البیع و حرم الربوا) البیع مفعول به دی منصوب په فتحه، همدا ډول (الربا) مفعول به دی منصوب په فتحه.

۲. کله مفعول به متعدده وي او دا په هغه صورت کې چې فعل د هغو افعالو له ډلې څخه وي چې زیات له یوه مفعول به منصوب کړئ چې دا فعلونه په دوه ډوله دي:

الف: هغه افعال چې په مبتداء او خبر داخلېږي چې په لاندې ډول دي:

- د ظن افعال: ظن، خال، حسب، زعم، جعل او هب.
- د یقین افعال: علم، وجد، الفی، تعلم (اعلم).
- د تحویل افعال: صیّر، حوّل، جعل، ردَّ، اتخذ او تَخِذَ.

لکه: ظننت الرجل نائماً. الرجل: لومړی مفعول به منصوب په فتحه، نائماً: دوهم مفعول به منصوب په فتحه.

حلت محمَّدا أخاک. محمدًا لومړی مفعول به، اَخاک دوهم مفعول به منصوب په الف ځکه چې اسماء خمسه څخه دی.

وجد السائرالطریق و عرًا. الطریق: لومړی مفعول به منصوب په فتحه، وعرًا دوهم مفعول به منصوب په فتحه.

تعلم الحیاة جهادًا. الحیاة: لومړی مفعول به منصوب په فتحه، جهادًا دوهم مفعول به منصوب په فتحه.

اتخد الله ابراهیم خلیلاً. ابراهیم لومړی مفعول به منصوب په فتحه، خلیلاً منصوب په فتحه دوهم مفعول به.

ب: هغه افعال چې په دوه مفعوله منصوبه وي خو په اصل کې مبتداء او خبر نوي چې یو څه یې په لاندې ډول دي:

کسا، البس، اعطی، منح،سأل او منع.

لکه: البس الربیع الارض حُلة زاهیة. الارض: لومړی مفعول به منصوب په فتحه، حلة دوهم مفعول به منصوب په فتحه او زاهیة د حُلَّةً صفت (لغت) منصوب او د نصب علامه یې (فتحه).

۳. هغه اسماء چې مفعول به واقع کېږي په لاندې ډول دي:

الف: معرب أسماء: لکه په مثالونو کې مو چې ولیدل.

ب: مبني اسماء: ضمیر، د اشارې اسم، موصول اسمأ. لکه: د أیتک. کاف: متصل ضمیر مبني په محل د نصب کې مفعول به.

ایاک نعبد. ایاک: منفعل ضمیر مبني په محل د نصب کې مفعول به.

يشجمع الجمهور هذا اللاعب. هذا:د اشارې اسم مبني په محل د نصب کې منصوب په فتحه، اللاعب د اشارې اسم صفت منصوب په فتحه.

: مؤل مصدر له (أن) او (فعل) يا له (أنَّ) او د هغه له اسم او خبر څخه. لکه: أكدِّتِ الصحف أن الأمن مستتب. مؤل مصدر له (أُنَّ) او د هغه له اسم او خبر څخه مفعول به.

۴. د اجائز دی چې مفعول به له فاعل څخه مخکې راشي. لکه: يجنى القطن الفلاح. القطن: مفعول به مقدم منصوب په فتحه.

کله چې مفعول به منفصل ضمير وي تقديم (مخکې والی) يې پر فاعل واجب دی. لکه: اِياک نعبدو أياک نستعين.

۵. حذف د هغه فعل چې په مفعول به کې عامل وي او يا سياق د کلام څخه معلوم شي او مفعول به ذکر شي، جائز دی.

لکه: علياً. د دې سوال په جواب کې: من قابلت به فعل حذف کوي او وايي: علياً چې تقدير يې داسې کېږي: قابلت عليا.

هم دا ډول بعضې داسې شائع عبارات وجود لري چې فعل يې حذف شوئ وي او مفعول به ذکر شوئ وي. لکه: اهلاً و سهلاً چې تقدير يې أتيت اهلاً او أتيت سعةً دی.

٦. قاعده داسې ده چې مفعول به وروسته له فعل او فاعل څخه واقع شي، خو کله ناکله مصدر او اسم فاعل هم کولای شي په مفعول به کې عامل شي.

لکه: ترکاالاهمال. الاهمال د مصدر مفعول به دی او منصوب په فتحه.

انا الشاکر فضلک. فضلک: مفعول به دی او منصوب په فتحه دی، چې عامل یې اسم فاعل دی. چې د دې مطلب تفصیل به د کتاب په دوهم جزء د مصدر په برخه کې راشي.

## مفعول مطلق

۱. مفعول مطلق: هغه منصوب مصدر دی چې د خپل عامل د نوع د بیان او یا د عدد د بیان د تاکید لپاره ذکر کېږي.

لکه: جفظت الدرس حفظا. حفظا مفعول مطلق منصوب دی چې د خپل فعل د تاکید لپاره ذکر شوئ دی.

سیرت سیراً حسنا: سیرًا د خپل فعل د نوم بیان کوي او مفعول مطلق منصوب دی.

یدافع الشعب عن حریته دفاع الابطال. دفاعَ منصوب دی مفعول مطلق د نوم د بیان لپاره.

ضربته ثلاث ضرباتٍ. ثَلاثَ: مفعول مطلق د نوع د بیان لپاره منصوب په فتحه.

۲. کله بعضې الفاظ د مفعول مطلق نائب واقع کېږي او پر مفعول مطلق دلالت کوي.

الف:د کل او بعضې لفظ چې مصدر ته مضاف وي:

احترمه کل الاِحترام. کل مفعول مطلق منصوب په فتحه، احتراخ مضاف الیه مجروې په کسره.

اتردد علیه بعضی التردد. بعضی مفعول مطلق منصوب په فتحه، التردد مضاف الیه مجرور په کسره.

ب: د مفعول مطلق مرادف: لکه: دفعته حفزًا یعنې دفَعًا.

ج: مفعول مطلق (مصدر صفت ذکر شي نه خپله) لکه:

تتطور الحياة سريعا، يعني تتطور الحياة تطولاً سريعا.

په پورتني مثال کې مفعول مطلق چې د (تطورا) دی حذف شوئ او کوم چې د هغه صفت دی (سريعا) ذکر شوئ چې دې ته د مفعول مطلق نائب ويل کېږي او منصوب په فتحه دی.

د: د اشارې اسم چې مخکې له مصدر څخه ذکر شي هغه ته هم د مفعول مطلق نائب ويل کېږي. لکه: اکرمته ذلک الاکرام.ذلک: د اشارې اسم مبني په محل د نصب کې مفعول مطلق. الاکرام: د اشارې د اسم بدل يا صفت منصوب په فتحه.

هـــ: داسې کلمه ذکر شي چې د مصدر په عدد دلالت وکړي. لکه: قابلته عدة مراتٍ. عدّة: د مفعول مطلق نائب منصوب په فتحه.

٣. کله په مفعول مطلق کې عامل فعل حذفېږي. لکه: شکراً چې په اصل کې: اشکرک شکرًا ده وروسته عامل چې اشکرک دی حذف شوئ دی. قياماً: په اصل کې قوموا قياماً دی چې فعل امر حذف شوئ دی. تحية طيبة: چې په اصل کې أحييکم تحية طيبة دی. انت انبی حقا. حقا: مفعول مطلق د محذوف فعل دی چې تقدير يې دی: يجد جدًا.

حضرالحفل جميع العاملين و أيضا المدير العام. أيضاً: د محذوف فعل مفعول مطلق دی چې تقدير يې: آض أيضا کېږي.

يکافأ الناجحون و خصوصا المتفوفين. خصوصاً: د محذوف فعل مفعول مطلق دی چې تقدير يې: أخص خصوصاً دی او المتفوقين مفعول به په ياء منصوب دی ځکه چې جمع مذکر سالمه دی.

سبحان الله. سبحان: مفعول مطلق د محذوف فعل چې تقدير يې أسبح کېږي، چې د تسبيح معنیٰ تبرئه او تزکيه دی او د سبحان الله معنیٰ: أبرئ الله من السوءبراءة دی.

## مفعول لاجله

۱. مفعول له هغه منصوب اسم دی چې وروسته له فعل څخه د فعل د سبب لپاره ذکر کېږي. او دی ولې؟ په ځواب کې چې (لِمَ) کېږي دا ډول کېږي.

لکه: تصرف المکافات تشجیعا للعاملین. تشجیعا مفعول له او منصوب په فتحه دی.

حضر علی أکراماً لمحمد.اکراما: مفعول لاجله منصوب په فتحه دی.

اسامح الصدیق محافظةً علی صداقته. محافظةً: مفعول له منصوب دی.

۲. مفعول په له اصل کې منصوب وي خوکله په لام مجرور کېږي، چې په دې حالت کې هغه ته مفعول له نه ویل کېږي بلکې جار او مجرور د معلل له فعل متعلق وي.

لکه: تصرف المکافات بتشجیع العاملین. حضر علی لاکرام محمد.

## المفعول معه

مفعول معه: هغه منصوب اِسم دی چې وروسته له هغه واوه چې د (مع) په معنیٰ دی ذکر شوئ وي: سرت و النیل. واو د معیت دی. النیل: مفعول معه منصوب په فتحه.

استیقظت و تغرید الطیور. الواو واو المعیة تغرید: مفعول معه منصوب په فتحه.

دا دواړو جملو معنیٰ په ترتیب سره په لاندې ډول دي:

له نیل سره یو ځای وخوځېدم          د مرغانو له غږ سره یو ځای راویښ شوم

یادونه:

د معیة او عطف واو تر مینځ توپیر په دې کې دی چې د عطف واو له ده څخه وړاندې او وروسته حکم افاده کوي، خو د معیة واو علاوه د حکم له افادې څخه یو ځای والی هم افاده کوي.

**مفعول فيه**

۱. مفعول فيه: هغه منصوب اسم دی چې د فعل د زمانې او يا ځای د وقوع يادونه کوي. او دی متی؟ يا أين؟ جواب ورکوي.

لکه چې ويل شوی وي: متی وقع الفعل؟ يا أين تم الفعل؟ مفعول فيه ته ظرف زمان ويل کېږي. کله چې د فعل د وقوع په دخت دلالت وکړي. لکه: مسافرت الطائرة ليلا. ليلاً: ظرف زمان منصوب په فتحه.

۲. ډېر مهم ظروف زمان په لاندې ډول دي:

مساعة، يوم، اسبوع، شهر، سنة، صباح، مساء، ظهر، ليل، غد، لحظة، برهة، مدة، فتره، حين، قبل، بعد، طوال، خلال او اثناء.

۳. ډېر مهم ظروف مکان په لاندې ډول دي:

أمام، وداء، خلف، يمين، يسار، شمال، جنوب، شرق، غرب، وسط، فوق، قرب، تحت، بين، عند، لدی، تلقاء، تجاه، نحو، حول، دون، ميل، فرسخ او کيلومتر.

۴. هغه ظروف زمان او مکان چې متصرفه او غير متصرفه وو ته تقسيم شوي:

الف: متصرف ظرف هغه دی چې کلمه د ظرف او کلمه د غير ظرف په ډول استعمال شوی وي، چې لاندې اسمونه له همدې ډلې څخه دي: يوم، شهر، سنة، اسبوع، ساعة، صباح، مساء، ظهر، ليل، لحظۀ، برهة، ميل، فرسخ، کيلومتر، يمين، يسار، وسط، شمال، جنوب، شرق او غرب.

پورتني ظروف ښايي د ظرف په ډول چې په زمان او يا مکان د وقوع د فعل استعمال شي نو په دې حالت کې منصوب وي ځکه چې مفعول فيه دی.

لکه: سأزورک يوم الجمعة، تغرد الطيور صباحاً. استمرالزلزال لحظة سرت کيلو متراً تقع سيناء شرق قناة السويس.

همدا ډول بنایی دا اسماء د غیر ظرف په ډول استعمال شي چې په دې حالت کې د خپل موقعیت په اساس په جمله کې اعراب ورکول کېږي. لکه: الکیلو متراً الف متر. الکیلومتر: مبتداء مرفوع له ضمه. جاء یوم الجمعة. یوم: فاعل مرفوع په ضمه. الشرق مهد الادیان السماویة. الشرق: مبتداء مرفوع په ضمه.

ب: غیر متصرفه ظروف:

غیر متصرفه ظرفو نه هغه اسمونه دي که چې یواځې د ظرف په حیث استعمالېږي، چې لاندې اسمونه د هغوی له ډلې دي:

حین، بعد، أثناء، خلال، ظوال، وراء، خلف، فوق، تحت، بین، عند، لدی، تلقاء، تجاه، نحو، حول، دون، او دا ټول منصوب په ظرفیت وي.

- دا اسماء یا مفعول فیه واقع کېږي چې پدې صورت کې منصوب کېږي.

لکه: تطیر الطائرات فوق اسحاب. فوق: د مکان ظرف مفعول فیه منصوب په فتحه.

- او یا خبر د مبتداء یا صفت واقع کېږي چې په دې صورت کې د هغه فعل متعلق گرځي چې وجوبا حذف شوئ دی او منصوب وي.

لکه: الجنة تحت اقدام الامهات. تحت: د مکان ظرف، خبر او په محذوف فعل چې د تستقی دی منصوب گرځي، او دا فعل واجب الحذف دی.

مرت بر جل عندک. عند: ظرف مکان د رجل صفت او د نصب عامل کې هغه فعل دی چې وجوبا حذف شوئ او د تقدیر یې (استقر) دی.

یادونه:

باید ووایو چې افعال په دوه ډوله دي. عام افعال او خاص افعال.

عام افعال هغه افعال هغه افعال دي چې هیڅ فعل د دوی له تضمین څخه نشي خالي کېدای. چې دا افعال په لاندې دری بیت کې جمع شوي دي:

افعال عموم نزد ارباب عقول      کون است و ثبوت است و وجود است وحصول

خاص افعال هغه افعال دي چې تر هغو پورې چې ذکر نشي د هغوی موجودیت نه پېژندل کېږي لکه کله چې ووایو:

زید جلس فی الدار، یا زید جالس عندک. که چېرې جلس او جالس لدې دواړو ترکیبونو څخه حذف کړو، نه پېژندل کېږي چې د متکلم منظور جلس دی که یا جالس، مگر هغه شئ چې پېژندل کېږي هغه د زید استقرار دی.

په دې ډول کله چې وایو: زید فی الدار یا زید عندک اورېدونکی یواځې د زید وجود یا استقرار باندې پوهېږي په تقدیر یې زید موجود فی الدار او عندک دی. که چېرې د ظرف او جار او مجرور متعلق عام فعل وي حذف یې واجب دی او ذکر یې کومه فائده نلري او بې له موجودیت څخه په کلام کې مفهوم دی.

خو خاص افعال بې د قرنیې له وجود څخه نه حذفېږي، ځکه چې ملحوظ والي کې نه پېژندل کېږي.

ملاحظه:

الف: جائز دی چې ظرف غیر متصرف په (من) مجرور وي. لکه: (قل کل من عندالله) و سرت من وراءه.

ب: ځینې ظروف مبني دي چې د هغوی آخر په جمله کې د موقعیت له لحاظه تغیر نه مني چې: حیث، أمس او أوألان له همدې ډلې څخه دي. (د دې مطلب تفصیل په وروستي فصل کې چې مبني اسم ته خاص شوئ راځي).

ج: هغه اسم چې وروسته له یوه ظرف څخه واقع کېږي د دې لپاره چې مضاف الیه دی همیشه مجرور وي.

د: زائده (ما) وروسته له بعضو د دې ظروفو واقع کېږي خو کوم تأثير د (ما) په مابعد کې نلري، بلکې د هغې مابعد د ماقبل د اضافت په سبب مجرور پاتې کېږي او خپله ياد شوئ ظرف د ظرفيت له وجهې منصوب پاتې کېږي. لکه: رجوته أن يحضر دونما تأخير. دونما: دون، ظرف، منصوب او (ما) زائده. تاخير: مضأف اليه مجرور په کسره.

هـ: جائز دی چې د څلورګونو جهتونو له أسماءو سره مشدده (ياء) زياته کړو او ووايو: شماليٌّ، جنوبيّ، د شمال او جنوب پر ځای. لکه: يقع اسودان جنوب مصر يا جنوبيّ مصر.

## الحال

١- حال هغه منصوب يه په محل د نصب کې لفظ دی چې د فعل د وافع کېدو په وخت کې د فاعل او يا مفعول په هيئات يا څرنګوالي بيانوي. ګويا چې د کيف وقع الفعل؟ ځواب دی.

لکه: جاء القائد منتصراً. منتصراً د قائد څرنګوالی په کوم حالت کې راځي بيانوي.

لکه: شربت الماء صافياً. صافيا: د هغه حالت بيان کوي کوم چې مفعول به (الماء) د څکلو په وخت کې په همدې حالت کې وه.

حضروا جميعاً: جميعا د هغې هيئت او حالت بيان کوي کوم چې حاضرېدونکی د حضور په وخت کې په هغه حالت وه.

حال نکره اسم وي او منصوب په فتحه، کوم فاعل يا مفعول به چې د هغوی د فعل يا انفعال حالت بيان شي، ذوی الحال په نوم يادېږي، او بايد معرفه اوسي لکه څنګه چې هغه اسم چې حال واقع کېږي بايد نکره اوسي.

٢- د حال ډولونه د مادې په لحاظ:

په دې لحاظ حال په درې ډوله دی: ظاهر اسم، شبه جمله او جمله.

الف: په پورتنیو مثالونو کې اسم ظاهر حال واقع شوئ اوکله چې اسم ظاهر حال واقع شي معمولاً مشتق او نکره وي. لکه: قائم، ظاهر، منتصر، سالم، حسن، مکتوب، محبوب.

مکروه_ دا وصف انتقال منونکی او له ذوی الحال سره غیر ملازم وي او یواځې د ذوی الحال له څرنګوالي د فعل د حدوث په وخت کې دلالت کوي. حال په نوع او عدد کې له ذوی الحال سره سمون او مطابقت لري. لکه: عادت الطائرة سالمة، عادت الطائرتان سالمتین، عادت الطئرات سالمة او سالمات.

کله جامد اسم هم حال واقع کېږي چې ډېر لږ دی او په بعضې صورتونوکې د اسم معنیٰ (مصدر) وي. لکه: هطلت المطار بغته. بغته: مصدر نکره او منصوب په فتحه د حالیت لپاره.

(ینفقون اموالهم سِرًّاو علانیة). سرًا: مصدر منصوب په فتحه بنا پر حالت. همدا ډول (علانیة)...

سرنایداًبید. یداً: اسم ذات، جامد منصوب په فتحه د حال توب په خاطر.

اصل دا دی چې حال نکره وي، خو کله معرفه هم راځي چې دا ډول ډېر کم راځي. لکه: اجتهدو حدک. وجد: حال منصوب په فتحه مضاف کاف ته، کاف ضمیر دی او مبني چې مضاف الیه واقع شوئ په محل د جر کې.

ب: شبه جمله (ظرف یا جار او مجرور):

لکه: دأیت الطائره بین السحابز بین اسحاب شبه جمله چې له ظرف او مضاف الیه څخه مرکب دی. حال واقع شوئ او د نصب په محل کې.

حضر القائد بزِّيه الرسمی. بزِّيه: جار او مجرور دی چې حال واقع شوئ په محل د نصب کې دی.

ج: جمله (اسميه يا فعليه):

استيقظت و الشمس ساطعة. والشمس ساطعة: اسميه جمله په محل د نصب کې حال.

سار الطفل يبکی. يبکی: فعليه جمله حال په محل د نصب کې.

هغه وخت چې جمله حال واقع کېږي لازمه ده چې د جملې او ذوالحال په سابين کر رابط وجود ولري. او دا کله يواځې واو، کله ضمير او کله واو او ضمير دواړه راځي.

لکه: سار الطفل و هويبکی. وهو: د حال واو او ضمير چې دا دواړه حال له ذوالحال سره نښلي (مرتبط).

۳- کله حال له ذوالحال څخه مخکې ذکر کېږي. لکه: مسرعا سار الرجل فجأة هبَّت الريح، يقع باطلا کل شرط يخالف احکام القانون.

۴- کله حال متعدد وي. لکه: حضر القائد ظافرً اضَاحِکاً. او لکه: فکلوه هنيئا مريئا.

۵- کله فعل او ذوالحال په وجوبي يا جوازي ډول حذفېږي.

د جائز حذف مثال: لکه څنګه چې د دې پوښتنې په ځواب کې چې (کيف جئت) د اکباأ ووايو، يعنې حئت راکباً.

د وجوبي حذف مثال: تتبع هذه التعليمات من الأن فصاعدًا چې تقدير يې داسې دی: تتبع هذه التعليمات من الأن والزمن يسير صاعداً.

# المستثنی

۱– مستثنی هغه منصوب اسم دی چې وروسته د استثناء له اداواتو څخه واقع شوئ وي تر څو چې حکم یې د ادواتو له ماقبل حکم سره مخالف شي.
لکه: حضر الرجال الازیداً. زیدا: مستثنی منصوب په فتحه.

۲– د استثناء ادوات په لاندې ډول دي: الا، غیر، سوی، خلا، عدا او حاشا.

۳– هغه چې په (الا) مستثنی شوئ وي درې حکمه لري:

الف: د نصب وجوب، په هغه صورت کې چې کلام مثبت او مستثنی منه ذکر شوی.
لکه: حفرالرجال الازیداً. زیدا مستثنی په (الاّ) او مستثنی منه چې (الرجال) دی ذکر شوئ نو لدې کبله مستثنی منصوب شوئ او علامه د نصب کې فتحه دی. لکه: قرأت الصحف الا صحیفتین. صحیفتین مستثنی په (الا) او منصوبه په (یاء) دی.

ب: د مستثنی د نصب جواز او د اتباع جواز چې د مستثنی منه څخه بدل شي په هغه صورت کې چې کلام منفي وي او مستثنی منه ذکر شوئ وي. لکه: ما قام أحد الا زیداً. زید مستثنی په (الا) منصوب په فتحه همدا ډول جائز دی جي وویل شي:
ماقام أحد الا زیدٌ. زیدٌ بدل له (أحدٌ) څخه چې مرفوع په ضمه دی.

ج: هر منفي کلام چې مستثنی منه نوي ذکر شوئ د خپل موقعیت له لحاظه په جمله کې اعراب ورکول کېږي. لکه: ماقام الا زیدٌ. زیدٌ: فاعل مرفوع په ضمه. ماقلت الاالحق. الحق: مفعول به منصوب په فتحه.

۴– مستثنی په (سوی او غیر):

هغه اسم چې وروسته له (سوی او غیر) واقع کېږي په دې اعتبار چې مضاف الیه دی هر وخت مجرور وي. خو خپله (رسوی او غیر) د مستثنی په (الا) حکم غوره کوي.

لکه: قام الرجال غیرَ زید. غیرَ: مستثنی منصوب په فتحه. زید: مضاف الیه مجرور په کسره.

۵- مستثنی په خلا، عدا او حاشا:

یو د دریو کلیمو مستثنی دوه حکمه لري:

الف: نصب د دې لپاره چې (خلا، عدا او حاشا) ماضي افعال دي نو مستثنی په حیث د مفعول به منصوب دی. لکه: عادت الطائرات عدا طائراةً. عدا: ماضي فعل مبني پر سکون ضمیر په کې مستتر هغه فاعل او طائرة: مفعول به منصوب په فتحه.

ب: جر: په دې اعتبار چې خلا، عدا او حاشا د جر حروف دی او خپل مابعد مجرور کوي. لکه: عادت الطائرات عدا طائرةٍ. عدا: حرف جر مبني پر سکون. طائرةٍ: مجرور په کسره.

کله چې مخکې له خلا او عدا څخه مصدریة (ما) واقع شي په دې صورت کې یوائې مستثنی منصوب کېدلای شي د دې لپاره چې مصدریه (ما) یوائې پر فعل داخلېدلای شي. مستثنی په دې اعتبار په مفعول به د یوه فعل له دوی څخه دی منصوب ګرځي.

لکه: الاکل شيءٍ ما خلا باطل. خو له حاشا څخه د مخه مصدري (ما) نه راځي.

ملاحظه:

د سوی او غیر اعراب چې د الا په معنی وکارول شي توضیح شي.

الف: په دې باید پوه شو چې دا دواړه لفظونه نور د استعمال موارد هم لري چې د خپل موقعیت پر اساس په جمله کې اعراب اخلي.

لکه: کلامک غیر مفهوم. غیر: پدې جمله کې خبر دی مبتدأ او مرفوع دی په ضمه. سوای بتحنان التغرید یطرب. سوای: مبتداء په مقدره ضمه مرفوع په الف.

**ب: کله د تعریف ادات (ال) له (غیر) سره یوځای کېږي (الغیر) چې د درېم طرف په معنیٰ کاورل کېږي.**

**لکه: صدرت هذه الشهادة دون ادنی مسئولیة فیما متعلق بحقوق الغیر. الغیر: مضاف الیه مجرور په کسره.**

## منادي

۱ – منادي هر هغه اسم دی چه وروسته له یوه اداة دی ندا ذکر شي :
د ندا ادوات په لاندې ډول دي :
(یا) چې د هر ډول ندا لپاره کارول کیږي لکه : یا نأئماً استَفیظ ، (الهمزه) چه د قریب ندأ لپاره کارول کیږي: أیا نبیل هلتسمعنی؟
۲ – منادي د اعراب له لحاظه په دوه ډوله دی: منصوب او مبني.
الف– منصوب: کله چه منادی مضاف یا شبیه مضاف سره، یا نکره غیر مقصوده وي، په دې صورت کې په هغه فرض فعل چه تقدیرئي "ادعو" دی منصوب ګرځي، لکه:
یا عبدالله . عبد: منادي مضاف منصوب په فتحه.
یا مذیعی الأنباء . مذیعی: جمع سالم مذکر او منادا مضاف منصوب په یاء.
یا طالعا جبلا . طالعا: منادي، شبیه د مضاف منصوب په فتحه.
یا رجلا خذ بیدی . رجلا: منادي منصوب په فتحه ځکه چې غیر مقصوده نکره دی.
ب ـــ منادي د خپلي رفع په علامه مبني ګرځي په هغه صورت کې علم یا مقصوده نکره دی. لکه:
یا علی . علی: علم منادي مبني پر ضمه.
یا بائع . بائع: نکره مقصوده مبني پر ضمه.
او یا شُرطیان: شُرطیان : مقصوده نکره مبني په الف ځکه چې مثنیٰ ده.
او یا قادرون : مقصوده نکره مبني پر واو ځکه چې جمع مذکره سالمه ده .
کتنه :
الف: د مقصوده نکری او غیر مقصوده نکره ترمینځ توپیر په دې کې دی چې که چیرې یو سړی چې مخامخ دی او ندا کونکی اوغواړې هغه ته خطاب وکړئ او وائې:

یا رجل ساعدنی، او یا مخامخ ده ته کوم سړی نه وي او او یا وائي: په لومړی جمله کې مقصوده نکره او په دوهم مثال کې نکره غیر مقصوده ده.
ب: کله چې عَلَمَ او مقصوده نکره مفرد اسم وي بې له تنوین څخه مبني اسم تنوین نه قبلوي نو یا عليُ او یا محمدُ ویل کیږي نه عليٌ او نه محمدٌ.
۳ – د معرف په لام اسم ندأ په دوه دوله جائز دی:
الف: له منادي څخه مخکې دی "أیها" لفظ راوړل کیږي او په دې صورت کې هغه اسم چې معرف په لام دی "أیها" صفت او مرفوع وي.
او که چیرې معرف په لام اسم مؤنث وي"ایتها" راوړل کیږي. لکه:
یاایها المواطنون: یا د ندأ حرف "دأی" منادي مبني پر ضحه ځکه چې مقصوده نکره ده او ها زائده ده. المواطنون دأی صفت او مرفوع په واو دې همدا ډول د مؤنث لپاره أیتها راوړل کیږي له: یا أیتها المواطنات.
ب: او کله چې مخکې له معرف په ال منادي څخه مناسب اسم اشاره راوړل شي په دې وخت کې اسم اشاره منادي او معرف په ال اسم د هغه صفت ګرځي. لکه:
یا هذه الفتاة. یا د ندأ حرف، هذه منادي مبني په محل دی رفع کې الفتاة د هذه صفت او مرفوع په ضمه.
له دې قاعدې څخه د "الله" لفظ مستثنیٰ دی ځکه چې بې له "ایها" څخه "یاالله" ویل کیږي. او په عام ډول "الهم" ویل کیږي یعنی د ندأ حرف حذفیږي او د جلاله اسم د (الله) په آخر کې مشدده میم راوړل کیږي.
۴ – کله منادي ذکر او د ندأ حرف حذفیږي:
لکه محمد أقبل چې په اصل کې یا محمد أقبل دی. أیها المواطنون په اصل کې یا ایها المواطنون دی سیداتی و ساداتی چې په اصل کې یا سیداتی و ساداتی دی.
ابا الزهراء قد جاوزت قدری بحمدک. چې په اصل کې یا ابا الزهراء دی.
"ربنا إنک رؤف رحیم" چې په اصل کې:"یا ربنا إنک رؤف رحیم" دی او د ندأ حرف حذف شوی.

٥ – کله چې منادا یاء دی متکلم که مضاف وي، حذف دی یاء او په کره استغناً جایز دی. لکه:

یا صدیق یعنی یا صدیقی. او لکه: یا ابن عم یعنی یا ابن عمی. رب زدنی علما یعنی یا ربی په دې ځای کې حرف ندأ او یاء دی متکلم دواړه حذف شوي دي او په ندأ دی أب او ام کې جئز دي چې یا أبی او یا أمی همدا ډول یا أبتِ یا امتِ او یا ابتَ یا امتَ وویل شي چې په دې حالت کې تا د متکلم د یأ په عوض کې راوړل کیږي.

٦ – د ندأ صیغه دری ډولونه لري، تعجبی، ندبه، او ترخیم.

الف: تعجبی ندأ: دا ډول د تعجب په صیغه او د ندأ په اسلوب ادأ کیږي. لکه: یا لجمال الطبیعة (طبیعت څه ډول ښکلی دی) او دا اسلوب له حرف ندأ د یا تعجب او متعجب منه چې په لام مفتوحه مجروروي، جوړه شویده.

دا جائز دی چې لام حذف شي او یا جمال الطبیعه أوویل شي. په دې وخت لکه منادي اعراب ورکول کیږي.

ب: مندوب: مندوب په دوه ډوله دی یو دا چې د هغه د منشت والي په واسطه تفجع او تحسر ښکارول کیږي. لکه: و ا ماه (وای مور می)

دوهم دا چې د هغه په وجود حسرت او فاجعه ښکارول کیږي. لکه: وا ظهراه (وای قاحی).

د ندبه روش له حرف ندأ (وا) او مندوب منادی څخه جوړه شوی چې په آخر کې یې الف او ها او یا یوائې الف راځي. لکه: وا اسفاه او وا اسفا:

ج: ترخیم د منادي د آخری حرف حذفولو ته ویل کیږي.

لکه: یا سعا. دی سعاد په ندأ کې.

هغه اسمونه چې ترخیم یې جئز دی په لاندې ډول دي:

- ❖ ټول هغه مؤنث اسمونه چې په آخر کې تاء لري. لکه: فاطمُ چې ترخیم شوی او د تا نیت تاء حذف شوی چې اصل یې یا فاطمة دی.

❖ هغه علم اسمونه چې رباعي او يا له هغه څخه زيات وي. لکه:
يا جعف يعنی يا جعفر.

په دی بايد پوه شو چې دی مرخم (ترخيم شوی) منادی آخر په دوه ډول اداً کيږي.

الف: د مرخمي منادي وروستی حرف په هغه دول لکه څنګه چې مخکې له ترخيم څخه وه لکه: يا فاطمَ و يا جعفَ د ميم او فأ په فتحه.

ب: دی مرخمي منادي اخر لکه دی مفردی معرفي در رفع په علامی مبني ګرځي. لکه: يا فاطمُ او يا جعفُ د ميم او فأ په خمي تلفظ کيږي.

**تميز**

۱ـــ هغه نکره اسم دی چې د يوې مبهمې کلمی د توضيح او بيان لپاره چې له هغه څخه مخکې راغلی راوړل کيږي.

او يا په بل عبارت تميز هغه نکره اسم دی چې دی (من) متضمن دی د ما قبل ابهام او اجمال له منځه وړی او بيانوي يې. لکه: اشتريت قنطارا قمحاً. که چيرې داسې اويل شي: اشتريت قنطارا او نور څه ونه ويل شي اوريدونکی نه پوهيږې چې کوم شی رانيول شوی دی، ځکه چې (قنطارا) مبهم دی او د هر څه احتمال لرلای شي خو کله چې (قمحاً) وويل شي دا ابهام لری کيږي.

تميز منصوب وي او عامل يې هماغه اسم تام مبهم دی. په پورتني مثال کې (قنطارا) مميز او (قمحاً) د هغه تميز دی.

۲ـــ مُمَيَّز:

مميز پر دوه ډوله دی:

الف: هغه مميز چې په کلام کې ذکر شوی وي او تلفظ پرې شوی وي.

چې لاندې ډولونه لري:

- د وزن اسم لکه: اشتريت در هما ذهبا.
- د کيل اسم لکه: باع الفلاح اردبا قمحا.

- د مساحت اسم لکه: زرعت فدانا شعیرا.
- د عدد اسم لکه: یترکب الیوم من اربع و عشرین ساعة.

(وروسته د عدد د اعراب او بنا صورتونه بیانیږي).

**ب ـــ ملحوظ ممیز:**

په دې ډول کې ممیز نوي ذکر شوی او تمیز له مبتدأ، فاعل او یا مفعول به څخه محول شوی وي. لکه: اعددرس اکثر خبرة من الطالب. خبرة تمیز منصوب له مبتدأ څخه محول دی.

چې جمله په اصل کې: خبرة المدرس اکثر من خبرة الطالب. لکه: طاب محمد نفسا چې اصل جمله طابت نفسا محمد، دی.

غرست الارض شجراً. شجراً بنا پر تمییز منصوب دی، چې اصل جمله: غرست شجر الارض دی او محول له مفعول به څخه دی.

**۳ـــ تمییز او د هغه دی اعراب حکم:**

الف: ملحوظ تمییز لکه څرنګه په مثالونو کې مو ولیدل هر کله منصوب وي.

ب: ملفوظ تمییز کله چې د وزن، کیل، یا مساحت اسم وي منصوب دی لکه په مثالونو کې مو ولیدل.

د ملفوز تمییز جر په اضافت او یا من جائز دی.

لکه: اشتریت جرا ما ذهبا یا اشتریت جرام ذهب، یا اشتریت جرا ما من ذهب (په من مجرور دی).

ج ـــ د عدد تمیز: (هغه نکره اسم چې وروسته له عدد څخه ذکر کیږي، تل مجرور یا منصوب وي). چې په لاندې ډول دي:

- د ۳ څخه تر ۱۰ عددونو تمییز جمع او مجرور وي. لکه: رأیت اربعة رجالٍ. چې رجالٍ تمییز او مجرور په کسره دی.

- د ۱۱ څخه تر ۹۹ عددونو تمییز مفرد او منصوب وي. لکه: فی الفصل ثلاثة و ثلاثون طالباً. چې طالباً مفرد او منصوب تمییز وي.

**۴ ــ د عددونو اشکال:**

عددونه مختلف شکلونه لري مفرد لکه: ۳، ۴، ۵، ٦ او داسې نور، او یا له بل عدد سره مرکب لکه: ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱٦ او یا هم معطوف او معطوف علیه وي لکه: ۲۴ (اربعة و عشرین) ۲۵، ۲٦ . او دی ۲۰، ۳۰، ۴۰، ۵۰، ٦۰، ۷۰، ۸۰، ۹۰. د عقودو په نامه یادیږي.

**۵ ــ عدد د اعراب او بنأ له لحاظه:**

ټول عددونه معرب دي او د موقعیت له لحاظه په جمله کې مرفوع، منصوب، او مجرور کیږي خو له ۱۱ – ۱۹ پورې عددونه له دې حکم څخه مستثنیٰ دي. ځکه چې استثناً دی ۱۲ چې لومړی جزئې معرب دی او لکه مثنیٰ علامه دی رفع یې الف او علامه نصب او جزئې لکه نور مرکب اعداد د ۱۱ – ۱۹ پورې مبني پر فتحه وي.

په پورتنې ترتیب د عددونو دی اعراب او بنا مثالونه:

- قرأت اربعة کتب. اربعة منصوب په فتحه مفعول به. کتب: تمییز مجرور به کسره.
- ارفعوا مبلغ خمسةٍ و عشرین درهماً. خمسةٍ مضاف الیه مجرور په کسره. عشرین معطوف مضاف الیه مجرور په یأ ځکه جمع مذکری سالمی سره مشابهت لري. در هماً تمییز منصوب په فتحه.
- ارفعوا مبلغا و قدره سبعة و اربعون دیناراً.

  قدره: مبتدأ مرفوع په ضمه (ها) ضمیر مبني په محل د جر کې مضاف الیه.

  سبعة: خبر د مبتدأ مرفوع په ضمه اربعوم: معطوف په سبعةُ مرفوع په واو، ځکه چې جمع مذکری سالمې سره شبیه دی.

ديناراً: تمييز منصوب په فتحه.

- o حضروا اثنا عشر طالبا و كتبوا اثنتى عشرة رساله.

اثنا عشر: فاعل، لومړی جز يې (إثنا) مرفوع په الف ځکه چې اعراب يې د مثنىٰ په ډول دی. او عشر: مبني پر فتحه.

**٦ـــ عدد د تذكيراو تأنيث له لحاظه:**

الف: د يوه (١– ٢) عدد تل له خپل معدود سره په تذكير او تانيت کې موافق وي که يواځې وي که مرکب له عشر سره او که معطوف په يو د عقودو (٢٠ – ٩٠) باندې وي.

- ❖ د (١) عدد لپاره دوه لفظه موجود دي واحد چې مؤنث يې واحدة او أحد چې مؤنث کې احدى دی.
- ❖ د (٢) عدد لپاره دوه لفظه موجود دي چې يو يې د مذكر او بل يې د مؤنث لپاره وضع شوی دي چې هغه اثنان او اثنتان د رفع په حالت کې دي او اثنين او اثنتين د نعب او جر په حالت کې.

او کله چې دغه الفاظ (د ٢ د عدد اسماً) له عشر سره مرکب شي د هغوی نون حذفيږي. لکه: فى القرية مدرسة واحدة، بعض الشهور واحدة و ثلاثون يوما، اى يوسف احد عشر كوكبا. تعلمت باحدى مدارس طنطا ـــ لى اخوان اثنان و اخوتان اثنتان.

عمر اختى اثنتا عشرة سنة و عمرى اثنتان و عشرون سنة رأيت اثنين و ثلاثين طالبا.

ب ـــ اعداد (٣٠ – ٩٠) سره واقع شي. په تذکير او تانيث کې د معدود پر عکس مذکر راځي که مفرد وي او که مرکب له عشر او يا معطوف عليه دی يو د عقودو (٢٠ – ٩٠) سره واقع شي. د معدود تذکير او تانيث په دې اړوند و مفرد په اعتبار په نظر کې نيول کيږي. لکه: ثلاثه جنيات. جمع مؤنثه ده خو څرنګه چې مفرد يې

(جنیه) ده مذکر دی عدد پر عکس ده مذکر ثلایه لیکل شوی او لوستل کیږي. (ثلاثه جنیات).

**مثالونه:** قرأت اربعة کتب، بالمنزل خمس حجرات.

نحج ثلاثه عشر طالبا، اعتمد القرا رسبع و ثلاثون دولة.

ج ــ د ۱۰ عدد کله چې مفرد وي د خپل معدود پرعکس او که مرکب وي په تذکیر او تانیت کې له خپل معدود سره موافق ذکر کیږي، او د عَشَرَ شین مفتوح وي خو کله چې تا په آخر کې راوړل شین نو جائز دی چې شین ساکن ولوستل شي لکه: (عَشْرَة) د یادولو وړ دی کله چې د ۱۰ عدد مفرد وي معرب او کله چې مرکب ذکر شي نو تل مبني پر فتحه لوستل کیږي. لکه: حضر عشرة رجال، قابلت عشر سیدات، مکشنافی جلال آباد عشر یوما و خمس عشرة لیلة.

د: د عقودو (۲۰ – ۹۰) الفاظ او د مأة او الف الفاظ او د هغوی (مأة او الف) جمع او تثنیه که مفرد وي یا معطوف د راتلونکې معدود مذکر یا مؤنث سره تغییر نکوي. لکه: "و واعدنا موسی ثلاثین لیلة" المسافر من کابول الی بغلان یقطع حوالی مأتین و عشرین کیلو متراً.

**۷ــ د دعددونو تعریف په "ال دی تعریف":**

عددونه په لاندې ډول د (ال) په واسطه معرفي کیږي:

که چیرې عدد مفرد وي (یعني له عشر سره مرکب نه وي) (ال) په مضاف الیه (معدود) باندې داخلیږي. لکه: جأ ستة الطلبة، إستبدلت خمسة الدینارات.

او که چیرې عدد مرکب وي لومړی جزء یې په (ال) محلي کیږي. لکه: قضینا الخمسة عشر یوما بکابول، او که عدد معطوف او معطوف علیه وي دواړه جزونه کې به ال معرفي کیږي. لکه: قرأت الخمسة و العشرین کتابا. د تذکیر او تأنیث له حیثه هغه عددونه او معدود چې محلي په ال وي د عامه قواعدو چې په دې اړه وجود لري تابع دي.

**۸ ـــ له عدد څخه مشتق پروزن د فاعل یا (ترتیبي اعداد):**

هغه عددونه چې پروزه د فاعل ددې لپاره چې په ترتیب دلالت وکړئ، جوړیږي په ټولو حالاتو کې د تذکیر او تأنیث له حیثه له خپل معدود سره مطابق راځي او معرب په وي، یواځي (۱۱ — ۱۹) عددونو چې معرب نه دي او دواړه اجزأ یې مبني پر فتحه دي. لکه:

تذاع نشرة الاخبار فی الساعة الثامنة والضف، ترتیب هذه الطالبة الثالثة والعشرون، یظهر القمر بدرا فی اللیلة الرابعة عشرة من الشهرالعربی.

**۹ ـــ کنایه عددونه:**

په عربي ژبه کې داسې کلیمې شته دي چې پر عدد دلات کوي، خو خپله د اعدادو له ډلي څخه نه دي لدې کبله د کنایه عددونو په نوم یادیږي. چې مشهور اسمونه یې په لاندې ډول دي:

بضع، استفهامیه کم، خبریه کم، کذا، نیّف.

**الف: بضع:** بضع داسې اسم دی چې له دری بیا تر نهو پورې کارول کیږي او دی تذکیر، تأنیث، او تمییز (معدود) لامله دی (۳ — ۹) عددونو حکم ترلاسه کوي.

لکه: قرأت بضع قصص. بضع: مفعول به منصوب په فتحه. او قصص: مضاف الیه مجرور په کسره په دې مثال کې لیدل کیږي چې بضع مطابق دی قاعدي دی ۳ او ۹ پر خلاف د معدود کې چې مؤنث دی، مذکر ذکر شوی دی.

**ب: استفهامیه او خبریه کم:**

استفهامیه کم هغه اسم دی چې د عددونو پوښتنې لپاره کارول کیږي او جواب ته اړتیا لري تمییز کې مفرد او منصوب ذکر کیږي.

لکه: کم مدینة شاهدت؟ کم کتاباً فی المکتبة؟

همدا ډول جائز دی چې دی (کم) تمییز مجرور شي خو په هغه صورت کې چې په کم حرف جر داخل شي لکه: بکم درهم اشتریت هذالکتاب؟

ـــ خبریه کم د عدد له ډیروالي څخه خبر درکوي او جواب ته اړتیا نلري او تمییز یې د کم د اضافت له وجهی مفرد مجرور یا جمع مجرور ذکر کیږي او په من هم مجرور کیږي. لکه: کم نقودٍ انفقت؟ یاکم من نقود عندک؟ او یا کم من کتاب عندک؟

خپله دی (کم) اعراب که استفهامیه وي او که خبریه په لاندې ډول دي:

که چیرې د کم په تمییز څخه وروسته متعدی فعل وي، کم مفعول به او د نعب په محل کې واقع کیږي. لکه چې په لومړې مثالونو کې مو ولیدل. او که وروسته له کم څخه فعل نه وي، کم مبتدا په محل د رفع کې دی. لکه په دوهمو مثالونو کې مو چې ولیدل.

**ج: کذا:**

دا لفظ په تکثیر دلالت کوي مفرر، مکرر، او معطوف کارول کیږي، او تمییز یې منصوب وي. لکه:

حضرالمبارات کذا متفرجاً، او یا کذا متفرجین او یا کذا و کذا متفرجین.

**د: نیّف:**

دا اسم پر هغه عدد چې دی دوؤ عقودو تر مینځ واقع شوي دلالت کوي لکه دی عشرین او ثلاثین ترمینځ عدد یا د ثلاثین او ار بعین تر مینځ عدد. لکه: قرأت نیِّفاً و ثلاثین قصة.

**د منصوب اسم تابع:**

د منصوب اسم تابع هم منصوب وي.

توابع لکه څرنګه چې له مرفوع اسم څخه وروسته بیان شول، نعت، عطف، توکید، او بدل ته ویل کیږي.

**نعت:** لکه إن التلمیذ المجتهد یخج بتفوق. المجتهدَ منصوب په فتحه وي ځکه چې دی إنّ د اسم نعت دی.

**توکید:** لکه دعوت القائد نفسه. نفسه منصوب په فتح دی ځکه چې د مفعول به تاکید واقع شوی دی.
**عطف:** لکه: سمعت الدرس مصغیا و متفهما. متفهمًا منصوب په فتحه دی ځکه چې په مصغیا باندې عطف دی او مصغیا منصوب دی ځکه چې حال دی.

## مجرور اسم

**لومړی: د اسم وجر نښې (علامې):**
**۱ــ کسره:** په مفرد منصرف اسم، جمع تکسیر او جمع مؤنث سالمه کې د جر علامه دی لکه: وصلت الی الدار. الدار: مفرد منصرف مجرور په کسره.
تحدث مع الرجال. الرجال: مکسره جمع مجرور په کسره.
**۲ــ یأ:** په مثنیٰ، جمع مذکره سالمه او اسمأ خمسه ؤ کې چې غیر له یأ دې متکلم ته مضاف وي علامه دی جر دی.
لکه: اطلعت علی قصتین. قصتین مثنیٰ او مجرور په یأ.
مررت بالمهندسین. المهندسین: جمع مذکره سالمه مجرور په یأ.
تحدثت مع أخیک. أخی دی اسمأ ؤ خمسهٔ و مکبرو څخه دی. او غیر له یأ د متکلم څخه مضاف دی، مجرور په یأ دی.
**۳ــ** او داسې اسمونه هم سته دي چې مجرور په فتحه کیږي یوه ډله یې مفرد او یوه ډله یې جمع مکسر دی چې دی ممنوع من الصرف یا غیر منصرف یادیږي چې وروسته بیانیږي.

**یادونه:**
**۱ــ** معتل الاخر په الف لکه (الفتی، القاضی) به مقدره کسره (مفروضه) په اخر کې مجرور کیږي. لکه: سافرت مع الفتی. الفتی: مجرور او د جر علامه یې مقدره کسره په الف دی. ځکه چې په ساکن الف تلفظ کول ګران دی.

رافعت القضية الى القاضی. القاضی: مجرور په مقدره کسره په یأ دی ځکه چې تلفظ دې کسرې پر یأ ګران او ثقیل دی.
په دې پوه شو چې د حرکت تلفظ په الف مستحیل او د کسرې تلفظ پر یأ ثقیل دی.
۲ــ کسره د جر اصلي نښه (علامه) فتحه او یأ فرعي علامه ګڼل کیږي.

**دوهم: د اسم د جر حالات:**

اسم په دوو حالاتو کې مجرور وي:
۱ــ کله چې له اسم څخه مخکې حرف جر واقع شي.
۲ــ کله چې اسم مضاف الیه واقع شي.

**ــ د جر په حرف مجرور اسم:**

کله چې اسم وروسته له حرف جر څخه واقع شي د جر له وجهې مجرور ګرځي.
د جر حروف په لاندې ډول دي:
من، الي، حتی، فی، عن، علی، بأ، لام، کاف، واو د قسم، تأ د قسم، رُبّ، مذ، منذ، خلا، عدا، حاشا.
لکه: سرت من المنزل إلی الحدیقة. المنزل مجرور په من او د جر نښه یې ظاهره کسره. الحدیقه: مجرور په الیٰ او د جر علامهٔ ظاهره کسره.

**په لنډه توګه د جر د حروفو د استعمال شرحه:**

**د من د استعمال موارد:** ابتدأ او تبعیض لکه: خرجت من المنزل (ابتدأ) چې دی وتلو نقطه دی شروع معلوموي.
انفقت من نقودی: من د تبعیض لپاره دلته استعمال شوي ده، د الیٰ د استعمال موارد:
الیٰ په انتهأ د غایې دلالت کوي.
لکه: سرت البارحة ای آخرالليل. یا سرت البارحة الی نعف اللیل.

**حتیٰ**: دفعل مضارع د نعب حرف، د عطف حرف او همدا ډول د جر حرف دی چې دلته یوائې د هغه دریم حالت د بحث وړ دی چې په انتها د غایه باندې دلالت کوي. لکه: "سلام هی حتی مطلع الفجر"

**فی**: د زمان او مکان ظرفیت بیانوي. لکه: (غلبت الروم فی ادنی الارض وهم من بعد غلبهم سیغلبون فی بضع سنین).

**عن**: د لرې کیدو لپاره استعمالیږي. لکه: ابتعد عن انشر.

**بأ**: مختلف او متعدد موارد د استعمال لري لکه مکاني ظرفیت (د فی په معنیٰ) استعانة، تعویض، التصاق او قسم.

مثال: اجتمعنا بالمنزل (ظرف مکان) کتبت بالقلم (استعانة) إشتریت بمأة افغانی (تعویض) مررت بمحمد (التصاق) باالله لن تفرط فی حقوقنا (قسم) لپاره ذکر شوی دی.

**لام**: د ملک، شبه د ملک او تعلیل لپاره استعمالیږي: لکه:

لله مافی سموات و مافی الارض (ملک)

للدار باب (شبه ملک) جئتک لاکرامک (تعلیل).

**یادونه:**

کله چې لام جاره په اسم چې په ال د تعریف معرفه شوي وي د (ال) الف حذفیږي. لکه: لِلملک، لِلدَّار.

**کاف**: د تشبیه لپاره استعمالیږي. لکه: الممرضة کا لملک محمد کالا سد.

**واو د قسم**: پر مقسم به داخلیږي. لکه: وَحَقِک لأ کافئنَّک.

**تأ د قسم**: غیر له اسم "الله" څخه نه استعمالیږي. لکه: لِلَّه لن یضیع الحق المغتعب.

**رُبَّ**: د مجرور د تقلیل د بیان لپاره راوړل کیږي او یوائې په نکره اسم داخلیږي. لکه: رُبَّ رجلٍ عالمٍ لقیت. لږ عالم سړي سره مخامخ شوی یم.

**مذ او منذ:**

دا دواړه کلمې کله اسم او کله حرف جر په ډول استعمالیږي.

الف: کله چې له مذ څخه وروسته اسم مرفوع وي، مذ اسم او په محل د رفع د مبتدأ که وي. همدا ډول منذ هم دی. لکه:

ما رأیته مذ یومُ الجمعه "مذ" په دې مثال کې مبتدأ او یوم الجمعة خبر دی.

ب: هر کله چې له مذ څخه وروسته مجرور اسم واقع شي، مذ حرف جر دی. که چیرې مجرور اسم ظرف او ضمانه ماضي وي مذ (همدا ډول منذ) په معنیٰ دی "من" راځي. لکه: ما رأیته مذ شهر رمضان. اله رمضان څخه تر اوسه هغه ماندې لیدلی، او که چیرې مجرور اسم ظرف او زمانه حال وي لکه: ما رأیته منذ شهرنا هذا پدې صورت کې مذ یا منذ په معنیٰ دی "فی" راځي "په ټوله میاشت کې هغه ما نه دې لیدلی".

د خلا، حاشا او عدا شرح مخکې ذکر شوي ده.

**۲ــ د جر حروف په دوه ډوله دي:**

**الف: اصلي حروف:** هغه حروف دي چې له هغوی څخه استغنا په کلام کې ممکنه نه وي لکه په تیرو مثالونو کې مو چې ولیدل.

**ب: زائد حروف:** هغه حروف دي استغناً له هغوی څخه په کلام کې ممکنه دي. چې د هغوی له ډلې څخه یو زائد (من) دی او د هغه دی زائدوالی شرط دا دی چې په نفی یا په استفهام مسبوق وي. لکه:

ما من اله إلاإله واحد ــ هل من خالقٍ غیرالله.

**زائده با:** با د لیس په خبر او د کفی په فاعل کې زائد واقع کیږي. لکه:

لیس الفقر بعیب، وکفی بالله ولیا.

زائد حرف جر خپل مدخول لفظا مجرور ګرځوي، مګر هماغه اسم په واقعیت کې د عامل او موقعیت لامله په جمله کې معرب وي. زائده بأ په مبتدأ هم داخلیږي لکه:

بِحَسبک درهم.

**کتنه:**

الف: د "ما" کلمه وروسته له (من)، (عن) او(بأ) څخه راځي خو د هغوی د عمل مانع نه ګرځي. لکه: "عمّا قلیل لیصبحُنَّ نادمین".

ب: د "ما" کلمه وروسته له کاف او رُبَّ زائد راځي او هغوی له عمل څخه منع کوي. لکه: ربما صدیق أنفع من شقیق.

ج: کله رُبّ حذفیږي او په عوض یې واو راوړل کیږي چې دی رُب په واو یادیږي او د جر د حرفو له ډلې څخه دي. لکه: ولیل کموج الجر ارخی سروله.

**په اضافة مجرور اسم:**

کله چې اسم مضاف الیه واقع شي نو مجرور ګرځي. مضاف الیه هغه مجرور ظاهر اسم یا ضمیر دی چې ماقبل ته د نسبت ورکړشوی وي. لکه: زرت حدیقة الاسماک او که چیرې یواځي زرت حدیقة اووایو او چپ شو نه پوهیږو چې هدف مو کومه حدیقه دی خو کله چې حدیقة الاسماک اووایو زمونږ هدف پیژاندل کیږي، نو ویلایشو چې حدیقه مضاف او الاسماک ته مضاف الیه وایې.

کله چې مضاف الیه معرفه وي نو مضاف هم معرفه ګرځوي او که نکره وي نو مضاف ته یو ډول تخصیص ورکوي.

**کتنه:**

نحویان د مضاف الیه د جر لامل او سبب مقدر حرف جر بولي چې په بعضې ډولونو د اضافت کې مقدر حرف جر "لام" په بعضو کې "من" او په بعضو نورو کې "فی" بولې او په ډیرو حالاتو کې لام مقدر کوي. لکه:

زرت حدیقة الاسمک یعني زرت حدیقة الاسماک. او "من" هغه وخت مقدر کوي چې مضاف الیه د مضاف له جنس څخه وي لکه: اشتریت خاتم ذهب چې تقدیر یې: اشتریت خاتم من ذهب کیږي. او "فی" هغه وخت مقدر کیږي چې مضاف الیه د

مضاف لپاره ظرف وي لکه: تطلبت منی کتابة هذا لبحث سهر اللیالی، یعني السهرفی اللَّیالی.

۲ــ مضاف الیه:

الف: مضاف معمولا له اضافت څخه مخکې نکره وي او اساس دی موقعیت یې په جمله کې اعراب ورکول کیږي. لکه: سورالحدیقة مرتفع. سور: مضاف مبتدا مرفوع په ضمه. أخذت کتاب التلمیذ. کتاب مضاف مفعول به منصوب په فتحه.

کتنه:

الف: اضافة په عربي ژبه کې په دوه ډوله دی ي معنوي او بل لفظي.

۱ــ معنوي اضافت: د غیر عامل اسم اضافت، مضاف الیه ته دی چې پورتنې مثالونه د همدې دول اضافت ښکارندوي دی. په دې ډول اضافت که مضاف نکره ده او له اضافت الیه څخه تعریف تر لاسه کوي. لکه: کتاب احمد او که چیرې مضاف الیه هم نکره وي نو مضاف په یوې وجه د وجوه څخه تخصیص ترلاسه کوي او خاص ګرځي چې په نامه دی مخصصې نکره یادیږي. لکه: کتاب رجل.

۲ــ لفظي اضافت: د مشتقه صفاتوله اضافت څخه عبارت دی چې لکه فعل عمل کوي، یعني فاعل مرفوع او نور خپل معمول منصوب کرځوي.

کله چې داعامله صفات خپل معمول ته مضاف شي، نو مضاف الیه مجرور ګرځوي نه مرفوع او منصوب د عامل والې له وجهې، او پدې اضافت کې که چیرې مضاف نکره وي په خپل حال نکره پاتې کیږي او کیداي شي چې معرف په لام وي پر خلاف د معنوي اضافت. لکه: قابلت الرجل الطویل القامة الجعد الشعر.

ب ــ داسې اسمونه وجود لري چې یې له اضافت څخه د استعمال مورد نلري او په نامه دی اسماً لازمة الاضافة یادیږي. چې لدې ډلې څخه لاندې اسمونه پیژندل شوي: عند، لدی، سوی، قصاری، حوالی، ذو بعض، وحد، ای، لدن، کلا، لبَّی.

لکه: هذالرجل ذومال و هو یبدل وحده قصاری جهده لمساعدة بعض المحتاجین.

په پورتنۍ مثال کې ذو، وحد، قصارى، او بعض د مضاف په ډول استعمال شوي دي.
بل مثال لکه: جأني كلا الرجلين و كلتا المرئتين.
ليدل کيږي چې كلا اوكلتا يوائې معرفه مثنىٰ اسم ته مضاف کيږي برابره ده چې مثنىٰ اسم ظاهروي او که ضمير لکه: جأني الرجلان كلا هما والمرئتان كلتاهما.
دريم مثال لکه: لبيک اللهم لبيک. لبىّ مثنىٰ مصدر منصوب او مضاف د مخاطب ضمير ته. او د لبيک معنى. اقامة بعد اقامة يعني: اتجاهى اليک و قصدى و اقبالى على امرک.
ج ـــ دى، قبل، بعد، غير، حسب، اول، دون، أمام، خلف، فوق، تحت يمنين، شمال كليمې څلور حالتونه لري چې په درې حالتونو کې معرب او په يوه حالت کې مبني دى.
د هغوى د اعراب حالات:
۱ـــ لفظا مضاف دى لکه: أجبت در همالا غيره، جئت من قبل زيد، قرأت القصة من اولها.
۲ـــ مضاف اليه محذوف او لفظ يې په نيت کې باقي او معنوي وي لکه: ومن قبل نادى كل صديق صديقة.
۳ـــ چې مضاف اليه حذف شي نه يې لفظ او نه يې معنى په نيت کې وي په دې صورت کله ياده شوي کله نکره او په تنوين لوستل کيږي لکه: لله الامر من قبل ومن بعد.
۴ـــ ددغو الفاظو د بناً حالات دادي چې دوي مضاف وي او د مضاف اليه معنى په نيت دى متكلم باقې وي نه لفظ يې لکه: لله الامر من قبلُ ومن بعْد په بل قرائت کې.

کتنه:
کله نا کله دى حَسْب (د سين په سكون) او حَسَب (د سين په فتح) د لوستونکې لپاره اشتباه او التباس را پيداکوي بايد پدې پوه شو چې حسب (د سين په سکون)

چې د کفایت په معنی دی، اعراب یې له پورتنی شرح سره سم دی. خو حسب چې دی (سین په فتحه) دی حَسبَ له فعل څخه چې دی حساب کولو په معنی دی مشتق شوی لکه: أذن المؤذن لصلاة العصر حَسَب التوقیت المحلی لمدینة کابل. چې حَسَبَ منصوب دی د ظرفیت له وجه.

د: کله مذکر مضاف، د مؤنث مضاف الیه په اعتبار د مړنث حکم ځان ته غوره کوي مگر په دې شرط چې دی مضاف حذف، او د مضاف الیه در بدل دهغه پر ځای جائز وي. لکه: شبه الجملة هی کل عبارة تألفت من ظرف و مضاف الیه او جار او مجرور. په دې مثال کې (شبه) مذکر اسم دی په دې اعتبار چې (جملة) ته مضاف دی او هغه مؤنث دی له هغې څخه یې تأنیث اخستی دی نو ځکه مؤنث ضمیر ورته راجع شویدی. او لکه: قطعت بعض اصابعه. بعض مذکر اسم دی او له مؤنثی مضاف الیه څخه یې چې د (صابع) دی تأنیث ترلاسه کړئ نو لدې وجه مسند فعل تأنیث واخیست.

هــ: تنوین او د مثنیٰ او جمعې نون له هغه مضاف څخه چې له اضافت څخه مخکې تنوین او یا نون د تثنیه او جمع ولري حذفیږي. لکه: المریض شارد البال، د شارد تنوین د اضافت له وجه حذف شو.

ذهب الی وزارتی الداخلیه و الخارجیه. د (وزارتین) نون وروسته له اضافت څخه حذف شو.

حضر مدرسو العلوم الإسلامیة. مدرسو په اصل کې مدرسون وه چې نون یې د اضافت له وجه حذف شو او باید په دې پوه د مدرسو واو در رفع علامه دی نه ضمیر نو لدې وجه وروسته له هغه څخه الف نه لیکل کیږي.

**۳ــ مضاف الیه:**

الف: مضاف الیه یا ظاهر اسم وي یا ضمیر.

ب: کله چې مضاف الیه اسم ظاهر وي معمولاً معرفه او تل مجرور وي. لکه:

اقمت فی مدینة المهندسین.
مهندسین: مضاف الیه په یأ مجرور، ځکه چې جمع مذکره سالمه دی. لکه:
رست السفینة علی مینأ مدینة لن تقبل طلبات غیر مستوفاة.
او کله چې اوغواړو معرفه ترې جوړه شي یوائې کولاي شو په مضاف الیه کې (ال) زیات کړو نه په مضاف کې او وایو چې:
رست السفینة علی مینأ مدینة التی لم تقبل الطلبات غیر المتوفاة.
یوه رواجې خطأ وجود لري چې عبارت له زیاتولو د (ال) په (غیر) باندېدی چې ویل کیږي: لن تقبل طلبات الغیر المستوفاة.
ج: کله چې مضاف الیه ضمیر وي نو له مضاف سره متصل وي او اعراب یې محل د جر دی. لکه: اخذ کتابک. کاف: ضمیر متصل مبني پر فتحه په محل دی جر کې مضاف الیه.
په راتلونکې څپرکې (د ضمائرو په برخه کې) ددې مطلب ذکر کیږي.
د: کله چې هغه اسم چې په آخر کې یې الف وي او یأ د متکلم ته مضاف شي یأ د متکلم مفتوح لیکل کیږي. لکه: سوائی، او یدائی او که چیرې د متکلم یأ ته د مضاف شوي اسم آخر حرف یأ اوسي، د متکلم یأ له هغه سره مدغم او یا مشدده مفتوحه لیکل کیږي. لکه: محاميَّ و مدرسيّ.

### د مجرور اسم تابع:

اسم د بل اسم په تابعیت هم مجرور راتلایشي: توابع لکه څرنګه و چې مخکې اوویل عبارت دی له: نعت، عطف، تالید او بدل څخه د مجرور تابع مثالونه په لاندې ډول وړاندې کیږي:
– نعت لکه: قضینا الصیف فی قریة بعیدة عن المدینة.
بعیدة د قریةٍ مجرور اسم صفت واقع شوی نو لدې کبله مجرور لوستل کیږي او د جر علامه یې کسره ده.

- عطف: لکه: اعجبت بالصحافة المدرسیه و مجلاتها.

مجلات: مجرور دی ځکه چې په مجرور اسم عطف دی او د جر علامه کسره دی.

- تاکید: لکه: تکلمت مع القائد نفسه، نفس: مجرور دی ځکه چې د مجرور اسم تاکید واقع شوی چې "القائد" دی او دی جر علامه کسره ده.
- بدل: لکه: مررت بأخیک عادل. عادل: د مجرور اسم "اخیک" بدل واقع شوی او د جر علامهٔ یې کسره ده.

**ممنوع من الصرف یا غیر منصرف اسم:**

قاعده داده چې هر مفرد اسم او جمع مکسره په کسره مجرور وي او په دا ډول اسمونه کې چې کله "ال" د تعریف نه وي نو ښائي چې تنوین ولري. د تنوین هغه ساکن نون دی چې د معرب اسم په آخر کې چې "ال" او اضافت و نلري تلفظ کیږي خو د نون په شکل نه بلکه دی دووٴ ضمو د رفع په حالت کې، (دووٴ فتحو د نصب په حالت او د دووٴ کسرو د جر په حالت کې لیکل کیږي).

**پوهنه:**

کله چې د اسم په وروستۍ برخه کې همزه وي لکه: مبتدأ او ابتدأ یا مدوره مربوط تأ لکه: فتاة، ددې اسمونو په آخر کې الف د نصب د علامې په دول نه زیاتیږي. لکه چې په لاندې جملو کې یې وینو:

یسمی الجزء الدائر علیه الحکم فی الجملة الاسمیة مبتدأ.

یحب علی الطالب العلوم الاسلامیه إبتداءً آن یتعلم جیدا قواعد الغة العربیه. رأیت فتاة تذهب مع أخیها الاکبر الی المدرسة.

او که چیرې د منصوب اسم آخر کې همزه وي او ما قبل یې ساکن او د یادشوو حروفو نور حروف وي، الف پرې زیاتیږي. لکه: اشتریت جزءً امن الکتاب "الفقه الاسلامی وادلته".

۲ــ د پورتنیو قواعدو پر خلاف یوه ډله مفرد اسمونه او جمعې کسره وجود لري چې تنوین او کسره نه مني او د هغوی د نصب او جر علامه غیر منونه فتحه دی، چې اسمونه ممنوع من الصرف بلل کیږي.

۳ــ غیر منصرف یا ممنوع من الصرف اسمونه عبارت دي له:

علم، صفة، صیغه دی منتهې الجموع او هغه اسم چې په الف ممدوده یا مقصوره دی تانیث ختم شوی وي.

**الف: علم چې ممنوع من الصرف وي:**

یو له اشکالو دی منع صرف د علم هغه دی چې مؤنث وي که په آخر کې یې تأ د تأنیث وي او که نه وي، حقیقي مؤنث وي او که لفظې مؤنث. لکه: فاطمة، خدیجة، مکة، معاویة، سعاد، وینب، بغداد، دمشق.

که چیرې مؤنث علم دری حرفې وي او د وسط حرف یې ساکن وي صرف او منع صرف یې دواړه جائز دي. لکه: هند، مصر، رعد.

ــ کله چې علم اعجمې وي په دې وخت کې هم غیر منصرف دی (عجمه علم) لکه: ابراهیم، ناپلیون، یعقوب، سقراط، ادریس.

او که چیرې اعجمې علم دری حرفې او ساکن الوسط وي منصرف دی لکه: نوح، لوط، فامُ.

ــ مزجې مرکب: هغه علم چې مزجې مرکب وي غیر منصرف دی لکه: بور سعید، بعلبک، نیو بورک، حضرموت.

ــ زائد الف او نون: هغه علم چې په آخر کې یې الف او نون زائده وي غیر منصرف دی لکه: مروان، عثمان، سلیمان، عدنان، عفان.

ــ وزن فعل (عُدَل): هغه علم چې د فُعَلَ پر وزن وي غیر منصرف دی لکه: عُمَر، زحل، قزح، جحا.

**ب: صفة منوعه من الصرف (د غير منصرف صفة):**

ــ هغه صفت چې فعلان پر وزن وي او مؤنث يې فعلي وي غير منصرف دی لکه: عطشان، سکران، غضبان، جوعان، شعبان.

ــ هغه صفت چې پر وزن دی افعل وي لکه: اخضر، احمر، اسود، اکبر، اکثر، افضل، اسبق، احسن.

ــ د عدد صيغې: چې د فُعال او يا مفعل پر وزن ذکر کيږي، غير منصرف دی. لکه: ثلاث، رباع، خماس، عشار، موحد، مثنیٰ و معشر.

**ج: د منتهی الجموع صيغې:**

کله چې اسم پروزن دی يو له لاندې اوازنو چې منتهی الجموع دی راشی نو غير منصرف وي لکه: أفعل، أفاعيل، فعائل، مفاعل، فواعل، فعاليل. لکه: افاضل، اناشيد، رسائل، مدارس، شوارع، عقاقير او مفاتيح چې دی مفاعيل پر وزن دی.

د: هر هغه اسم چې په آخر کې يې الف مقصوره يا ممدوده و تأنيث وي ممنوع الصرف دی. لکه: سلوی، نجوی، عطشی، جوعیٰ، سلمی، صبلی او بشری (چې په الف مقصوره و تأنيث مختوم شوی) ذکرياء، ذهراء، خضراء، حمراء، حسناء، صحراء، اصدقاء، شعراء (چې په ممدوده الف د تأنيث مختوم شوی).

په پورتنيو مثالونو کې مو وليدل چې هغه اسم چې په الف دی تأنيث مختوم وي، که علم يا صفت، يا کوم بل اسم چې په مفرد دلالت وکړئ يا پر جمع په دې ټولو حالاتو کې ممنوع الصرف او غير منصرف دی.

**يادونه:**

د هغه اسم چې مختوم په الف مقصوره يا ممدوده وي د منع حرف شرط دا دی چې نوموړی الف زائد او دی تأنيث لپاره وي که چيرې مقصوره الف دا ډول نوه او له اصل کلمه څخه وه لکه: فتی، ملهی، او مستدعی په دې صورت کې اسم منصرف دی. همدا ډول که چيرې ممدوده همزه اصلي وي لکه دی ابتداً همزه او د انشاء

همزه یا له یأ او واو څخه منقلب او اړول شوي وي. لکه: د بناء او اسماء همزه دا ډول اسمونه غیر منصرف ندي.

۴ــ غیر منصرف اسم باندې تنوین او کسره نه منې نو رفع یې په غیر منونه ضمه، نصب او جر یې په غیر منونه فتحه اعراب ور کول کیږي. دا حکم په هغه صورت کې دی چې غیر منصرف اسم له (ال) او اضافت څخه خالي وي. لکه:

کتب معاویة الی عایشةَ رضی الله عنها ــ مررت بسلیمان شعب بورسعید شعب باسل ــ تقابلت مع أحمد ویزید قرأت عبقریة عمر ــ استمتعت إلی اذاعة جمهوریة مصر ــ لا أبیت شبعان و جاری جوعان ــ لست بأسبق منی الله اکبرِ سرت فی شوارع فسیحة ــ أنشئت مدارس ــ کم من شعراء جددوا فی شعرهم ــ خرجت من صحراء جدباء وزرت حدائق فیحاء.

"و اذا حییتم بتحیة فحیوا باحسن منها، و جعلناکم شعوباً و قبائل لتعارفوا ــ فمن کان منکم مریضا او علی سفر فعدة من أیام آخر ــ یسألونک عن الأهلة قل هی مواقیت للناس والحج" "إنا او حینا إلیک کما اوحینا الی نوح والنبیین بعده و اوحینا إلی ابراهیم و إسماعیل و اسحاق و یعقوب والاسباط و عیسیٰ او أیوب و یونس و هارون وسلیمان و آتینا داوٗد زبورا ".

۵ــ کله چې غیر منصرف په محل دی جر کې واقع شي معرف په (ال) څخه وي ولی مضاف وي، په دې دواړو صورتونو کې مجرور په کسره وي لکه: انقضت قاذفات القنابلِ علی مواقع العدد.

القنابل: که څه هم په اصل کې غیر منصرف دی خو ددې لپاره چې په پورتنۍ جمله کې معرف په (ال) دی مجرور ګرځي.

مواقع: مجرور په کسره دی که څه هم په اصل کې غیر منصرف دی اما ددې لپاره چې مضاف واقع شوی نو جر یې په کسره جائز شه.

**عمومې کتنې د معرب اسم په اړه:**

د معرب اسم په اړوند څو مهمې نکتې په پایله کې د یادولو وړ دي چې په لاندې ډول وړاندې کیږي:

۱ــ کله چې دوه اسمونه معرفه یا نکره څنګ په څنګ سره راشي او دوهم اسم وصف (مشتق یا صفتي اسم) وي دوهم اسم دې لومړي اسم لپاره نعت دی او د لومړي اسم حکم غوره کوي. لکه: جاءالرجل الفاضل، رأیت رجلاً فاضلاً.

۲ــ کله چې دوه اسمونه څنګ پر څنګ راشي، لومړی اسم نکره او دوهم اسم معرفه وي، دوهم اسم مضاف الیه او مجرور وي. لکه: اخذت کتاب الطالب.

۳ــ کله چې دوه اسمونه څنګ پر څنګ راشي لومړی اسم معرفه او دوهم نکره وي، لومړی اسم مبتدأ او دوهم اسم دهغه خبر وي لکه: العلم نورُ.

۴ــ په ډېرو شکلونو کې د حال تمییز پیژاندل او یو له بل څخه جلا کول ډیر دقت غواړي ځکه چې حال او تمییز دواړه هم نکره اسم وي او هم منصوب چې د فاعل یا مفعول به په څرنګوالي د فعل لپاره قید دی. لکه: شربت الماء صافیاً.

صافیا حال دی. خو تمییز معمولاً اسم ذات وي چې د من د معنی متضمن دی او د خپل ماقبل د اجمال او ابهام بیانونکی دی. لکه: طاب محمد نفساً. نفساً: تمییز دی.

۵ــ أسماء خمسه عبارت دی له: اب، اخ، حم، فو، ذو، څخه. دا اسمونه په واو مرفوع، په الف منصوب او په یاء مجرور ګرځي. خو په دې شرط چې، غیر یاء دې متکلم ته مضاف وي مفرد ووسي مثنیٰ او جمع نوی مکبر وي او مصغر نه وي. لکه: جاء أخوک ــ رأیت اباک ــ مررت بذی مال.

او که چیرې مضاف نه وي، بیا په ظاهرو حرکاتو معرب دی لکه:

کل مسلم أخ لجمیع المسلمین.

ــ او کله چې یاء دی متکلم ته مضاف وي په مقدره حرکاتو د ماقبل دی یاء د متکلم معرب کرځي. لکه: کان أبی کریما، أب: اسم د کان مرفوع په مقدره ضمه پر یاء، او یاء متصل ضمیر مبني په محل دې جر کې مضاف الیه.

کریماً: خبر د کان منصوب په منونه فتحه.

ـــ او که چیرې مثنیٰ او جمع وي نو لکه د نورو اسمونو د مثنیٰ او جمع په ډول اعراب اخلي. لکه: إنّ أخویک ذوافضل. اجتمع مجلس الأباء.

ـــ او که چیرې نومورې اسمونه مصغر او مضاف غیر له یا دی متکلم څخه بل اسم ته وي نو په ظاهرې حراکاتو پر یا اعراب ورکول کیږي لکه:

کان أبَیُّک أُخَیَّ ذویَّ هذا لغندق.

د ستا پلارګی او وروړګی ښبتنګې ددې هوټل وه.

**عمومې معلومات د اسماءو خمسهٔ ؤ په اړوند:**

اب: دا اسم په اصل کې "أبو" وه تثنیه أبوان او أبوین دي جمع یې آباء دی. أبوان د مور او پلار په معنی استعمال شوی. أبَوّه (مصدر) د پلارتوب لکه عمومه چې د کاکاتوب په معنی استعمالیږي یاأبتِ او یا أبتَ دوه هغه لهجې دي چې د پلاریه ندا کې استعمالیږي چې په اصل کې یا أبی او تاء د یاء متکلم پر ځای راغلی.

أخ: په اصل کې أخَو په فتحه دی خاء ده چې تثنیه یې أخوان او أخوین او جمع یې أخاء لکه أباء راځي او په جمع کې یې إخوان او اخوة مشهور شوي. أخوان دیر ځله دی ملګرو او اخوة د نسبې ورڼو لپاره استعمال شوي دي.

حم: اصل یې حَمو په فتحه دی میم دی تثنیه یې حموان او حموین او جمع یې احماء راځي. حماه: خواښې ته ویل کیږي.

فوه: چې اصل یې فوَهَ په فتحه واو دی او های تنقیص شوی تثنیٔه یې فوا او فوی او جمع یې أفواه راځي.

ذو: اصل یې ذویُ په معنی دی صاحب راځي او تل اسم جنس ته مضاف کیږي لکه: ذومال، اوهیڅکله ضمیر او صفت ته نه مضافیږي او که چیرې مضاف شوی وي نو دیره نادره دی. مؤنث مفرد یې ذات او مذکره تثنیه یې ذوا، ذوی او مؤنثه تثنیه یې ذواتی او مذکره جمع یې ذوو او ذوی او مؤنثه جمع یې ذوات راځي.

خوذ (سامرة)، ذات یوم، ذات لیلة، د زمان ظرف او منصوب په فتحه دی.

# دوهم څپرکی (فصل)

## مبني اسم

۱ــ مبنٰ هغه اسم دی چې دی آخر شکل يې په سبب دی تغير دی موقعيت په جمله کې تغير ونه منې.

۲ــ مبني اسمونه اته ډوله دي:

* ضمائر
* دی اشارې إسمونه
* موصله إسمونه
* د شرط إسمونه
* استفهام إسمونه
* مرکب اعداد له (۱۱ ــ ۱۹) پورې په استثناً دي (۱۲) چې معرب دی او بعض ظروف او له ظروفو مرکب.
* بعض ظروف او ظروفو مرکب اسمونه.
* اسماء افعال.

۳ــ مبني إسمونه تنوين نه اخلې او ډير يې له حرف سره مشابهت لري د مبني إسمونو وروستیۍ برخه تل په يوه حالت ساکن، مفتوح، مضموم يا مکسور وي.

يو ډله اسماء مبني پر سکون وي لکه: الذی، انا، من، کم او همدا دول نور. او يوه ډله اسماء مبني پر فتح وي لکه: أنتَ، أينَ، کيفَ، سرعانَ، او يوه ډله نو مبني پر ضمه لکه: نحنُ، حيثُ او يوه ډله اسمونه مبني پر کسره دي لکه: هذه، هئولاء، أمسين،

۴ــ کله چې مبني اسمونه په يوه ځای له ځايونو دی اعراب څخه لکه درفع، يا نصب او يا جر ځای راشي د وروستې شکل حرف يې تغيير نه راځي خو د موقعيت له حيثه په جمله کې په محل دی رفع، نصب او جر کې واقع کيږي.

**کتنه:**

پورتنې اته ډوله اسمأ پر لازمي بنأ مبني دي يعنى هيڅ کله معرب نه ګرځي او داسې حالات هم شته چې معرب اسمونه په هغه حالت کې مبني ګرځي، خو مبني والی يې عارضي بلل کيږي چې په لاندې ډول دي:

الف: هغه منادي چې مغرده يا علم او يا مقصوره نکره وي.

دا دواړه منادي مبني په علامه دی خپل رفع کيږي او دا چې وايو مفرده وي دا افراد د مضاف په مقابل کې دی نه دی تثنيه او جمع په مقابل کې.لکه: يا محمدُ، يا بايعان، يا خالدون.

ب: اسم د (لا) النافية للجنس چې مضاف او شبه مضاف نه وي د نصب په خپله علامه مبني ګرځي لکه: لا حول ولاقوة إلابالله.

ج: دی قبل، بعد، غير، حسب، اوّلُ او دُوّنَ کله چې د هغوې مضاف اليه حذف شي د خپلي رفع په علامه مبني ګرځي لکه: ما رأيت مثل هذالکتاب من قبلُ.

**ضمير:**

۱ــ ضمير مبني اسم دی چې پر متکلم، مخاطب او غائب باندې دلالت کوي او په دری ډوله دی: منفصل، متصل او مستتر.

۲ــ منفصله ضمائر: هغه الفاظ دي چې په مستقل ډول لوستل کيږي او په دوه ډوله دی مرفوع او منصوب.

الف: درفع منفصل ضمائر: هغه ضماير دي چې د رفع په محل کې مبتدأ، خبر، فاعل يا نائب فاعل او داسې نور واقع کيږي. او په لاندې ډول دي:

د متکلم لپاره: انا نحن.

د مخاطب لپاره: أنت، أنتِ، انتما، انتم، أنتن.

د غائب لپاره: هو، هی، هما، هم، هنَّ.

لکه: أنا افغانی. انا ضمیر منفصل مبني پر سکون په محل دې رفع کې مبتدأ. ما قام إلا هو. هو منفصل ضمیر مبني پر فتحه په محل دې رفع کې فاعل. لم یکا فأ الانحن. نحن منفصل ضمیر په محل دی رفع کې نائب فعل.

ب: د نصب متصل ضمائر:

دا ضمائر په محل دی نصب کې مفعول به واقع کیږي او عبارت دي له:

د متکلم لپاره: إیای إیانا.

د مخاطب لپاره: ایاک، ایاکِ، ایاکما، ایاکم، إیاکنَّ.

د غائب لپاره: ایاه، ایاها، ایاهما، ایاهم، إیاهن.

لکه: "ایاک نعبد و إ یاک نستعین".

ایاک: منفصل ضمیر مبني پر فتحه په محل د نصب مفعول به.

۳ـــ متصل ضمائر:

متصل ضمائر په دری ډوله دي.

الف: درفع متصل ضمائر: دا هغه ضمائر دي چې تل د فعل سره متصل وي که فعل تام وي او که ناقص او په لاندې ډول دي:

- د فاعل تأ لکه: درستُ، درستِ، درستما، درستم، درستنَّ.
- نا لکه درسنا.
- د تثنیې الف لکه: درسا، یدرسان، تدرسان، أدرسا.
- د جمع واو لکه: درسوا، یدرسون، ادرسوا.
- د مخاطبی یاء لکه: تدرسین، ادرسی.
- د نسوه نون لکه: درسن، یدرسن او ادرسن.

دغه ضمائر مرفوع او فعل تام (هغه فعل چې فاعل غواړي) سره متصل او په محل در فع د فاعل د همغه فعل کې دی. لکه:

قرأت الصحف: قرأ فعل ماضي مبني (تُ) ضمير متصل مبنیٰ پر ضمه په محل دې رفع کې فاعل.
القطاران يسيران. يسيران فعل مضارع مرفوع او دی رفع علامه يې د نون ثبوت (د نون نه حذفيدل) دي. او الف دې تثنيه متصل ضمير په محل دی رفع کې فاعل.
الطالبات نجحن. نجحن: نجح فعل ماضي او د نسوه له نون سره يوځای توب لامله مبني پر سکون. نون ضمير مبني پر فتحه په محل دې رفع کې فاعل.
او يا د ناقص فعل سره متصل وي: (هغه فعل چې مبتدأ او آخير کې عمل کوي نه په فاعل کې) په دې صورت کې هم مبني او پ محل درفع د ناقص فعل کان او د هغه دې اخواتو د اسم وي. لکه: كنتم خيرامة اخرجت للناس. كنتم ناقص ماضي فعل تاء متصل ضمير مبني په محل دې رفع کې اسم د کان.
خيرَ: د کان خبر منصوب په فتحه.
كانوا يدًا واحدًة. كانوا ناقص ماضي فعل واو متصل ضمير په محل دې رفع کې د کان اسم. يدًا خبر د کان منصوب په فتحه.
ب: دنصب متصل ضمائر:
دا ضمائر يا له تام فعل سره متصل وي او يا له حروف مشبه بالفعل سره او په لاندې ډول دي:
د متکلم ياء: لکه شكرنی.
د متکلم (نا) مع الغير متکلم: لکه شكرنا، کاف د مخاطب: لکه شكركَ، شكركِ، شكركماـــ شكركم، شكركن.
د غائب ها: لکه شكره، شكرها، شكرهما ـــ شكرهم، شكرهن.
دغه ضمائر، د نصب متصل ضمائر له فعل سره او د هغه مفعول به واقع کيږي مبني په محل دې نصب کې دی. لکه:

تقدم الجنود نحوالعدو وحاصروه. حاصروه: حاصر ماضي فعل مبني، واو ضمير، مرفوع متصل مبني په محل دې رفع کې فاعل د حاصر، هاء منصوب متصل ضمير مبني په محل دې نصب کې مفعول به.

الا ناشيد الوطئية تهزنا. تهز: فعل مضارع مرفوع په ضمه فاعل يې ضمير مستتر چې تقدير يې (هى) دى او (نا) متصل ضمير مبني پر سکون په محل دې نصب کې مفعول به.

يا به له مشبه بالفعل حروفو سره متصل وي (إنّ او د هغه أخوات): چې په دې حالت هم مبني او په محل دى نصب دې إسم د إنّ يا يوله نورو حروفو مشبه با لفعل څخه وي. لکه: إنه موجود. إنَّ د تاکيد او نصب حرف، ها متصل ضمير مبني پر ضمه په محل دې نصب کې د إنَّ إسم. موجود: د إنَّ خبر مرفوع په ضمه.

ج: د جر متصل ضمائر:

دا ضمائر يا له اسم سره متصل وي او يا د جر له حروفو سره چې عبارت دي له:

ياء د متکلم لکه: کتابى

(نا) متکلم مع الغير: کتابنا ـــ جاء احمد إلينا.

د مخاطب کاف: کتابک، کتابَک، کتابکما، کتابکم، کتابکنّ.

جاء احمد إليک، اليکِ، إليکما، إليکم، إليکن.

لکه په مثالونو کې مو چې وليدل دا ضمائر يا له اسم سره متصل وي چې په دې حالت کې مبني او په محل دې د جر کې مضاف اليه. لکه:

العلم له فوائده. فوائده: ها متصل ضمير مبني پر ضمه په محل دې کې مضاف اليه.

يا له حرف جر سره متصل وي چې په دې حالت کې هم مبني او په محل دې جر کې بلل کيږي. لکه: أخذت القلم منک، من حرف جر او کاف ضمير مبني پر فتح په محل دې جر کې.

**۴ــ مستتر ضمائر:**

**دا ضمائر ظاهرې صورت نلري چې تلفظ پرې وشي او په دوه ډوله دی:**

**واجب الاستتار ضمائر، او جائز الاستتار ضمائر.**

**الف: هغه ضمائر چې استتار يې واجب دی: هغه ضمائر دي چې دې اسم ظاهر راوړل د هغه پر ځای هيڅکله جائز ندې. چې په لاندې ډول د هغه موارد راوړل کيږي.**

**ــ واحد مخاطب د امر فعل: لکه: اکتب. اکتب د امر فعل مبني پر سکون او فاعل يې وجوبې مستتر ضمير چې تقدير يې (أنت) دی. ددې ضمير ابرازول جائز ندې ځکه چې ظاهر اسم د هغه پرځای نشي راتلای. او که چيرې اووايو: اکتب زيد په هغه صورت کې چې د مخاطب نوم زيد وي په هيڅ صورت کې زيد فعل نشي کيدای خو منادي د ندأ د حرف په حذف کيدای شي او په محل دې نصب کې مفعول به واقع کيږي.**

**او که چيرې اووايو: اکتب انت. انت هم فاعل نشي کيدای که چيرې فاعل شي نو دی فاعل حذف هم بی له قائم مقام څخه جائز ندی نو ويلايشو چې انت د مستتر ضمير لپاره چې فاعل دی تأکيد دی.**

**ــ هغه مضارع فعل چې په تاء د خطاب، همزه يا نون د متکلم شروع شوی وي.**

**لکه: تشکر، تَشْکُرُ: مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل يې وجوبې مستتر ضمير چې تقدير يې (أنت) دی.**

**أوافق: مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل يې وجوبې مستتر ضمير چې تقدير يې (انا) دی.**

**نکتب: مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل يې وجوبې مسترضمير چې تقدير يې (نحن) دی.**

**ب: جوازې مستتر ضمير: هغه غير ملفوظ ضمير دی چې ظاهر اسم يې په محل کې واقع کيدايشي. جوازې مستتر ضمير په فعل ماضي او مضارع کې غائب يا غائبی ته**

مستند وي. لکه: الرجل قام، قام ماضي فعل مبني پر فتحې، فاعل يې مستتر ضمير چې ابراز کې هم جواز لري او تقدير يې (هو) دی.
الشمس تشرق. تشرق: مضارع فعل مرفوع په ضمه فاعل يې جوازې مستتر ضمير چې تقدير يې (هی) دی.

**يادونه:**

په ډيرو مواردو او ترکيبونو کې د کان او د هغه دي اخواتو اسم مستتر ضمير وي، په خاص ډول په هغه جملو کې چې په مبتدأ شروع او خبر يې يو له افعال ناقصه او د هغه اسم او خبر وي. لکه:
النجاح ليس سهلا: النجاح مبتدأ مرفوع په ضمه. ليس: ماضي ناقص فعل او يو له اخواتو د کان مبني پر فتح او اسم يې مستتر ضمير چې تقدير ي (هو) دی او النجاح ته راجع دی.
سهلاً: د ليس خبر منصوب ټوله جمله له ناقص فعل (ليس) او د هغه له اسم او خبر څخه مرکبه خبر لپاره دی النجاح چې مبتدأ دی.
**٥ــ د ضمير تاکيد:**
الف: کله چې اوغواړو منفصل ضمير ته تاکيد ورکړو، نو هغه لفظ تکرارؤ لکه: هو، هو الغفور الرحيم ــ اياک، اياک نستعين.
ب: قمت بالواجب: تاکيد يې قمت انا بالواجب. إفتح النافذة: افتح أنت النافذة.
ج: کله چې اوغواړو متصل او مستتر د رفع ضمائر دی (نفس) او يا (عين) په کلمو تأکيد وکړو. واجب دی چې لومړی هغه د مرفوع منفصل ضمير پواسطه تاکيد او وروسته د (عين) يا (نفس) کلمه ذکر کړو. لکه:
قمت انا نفسی بالواجب، افتح أنت عينک النافذة.

د: کله چې د مرفوع متصل یا مستتر ضمیر تاکید د کلا، کلتا، کل یا جمیع پواسطه اراده شي، نیغ په نیغه یو له دې الفاظو راوړو او په دې صورت کې تاکید د منفصل ضمیر پواسطه شرط نه دی. لکه: الرجلان حضرا کلاهما و السیدتان تکلما کلتا هما. العلماء یحا ولون کلهم او جمیعهم إکتشاف اسرار الطبیعة.

٦ـــ عطف په ضمیر:

الف: منفصل ضمیر پر منفصل ضمیر عطف کیږي. لکه: أنا و أنت متفقان فی الرأی.

ب: ظاهر اسم پر منفصل ضمیر عطف کیږي. لکه: هم و جیرانهم متفاهمون.

ج: کله چې ظاهر اسم په متصل ضمیر دې یا په مستتر ضمیر عطف شي، نو واجب دی چې فاصل دې معطوف او معطوف علیه ترمنځ د یوه منفصل ضمیر یا کوم بل فاصل راوړل شي. لکه: شرعت انا و صدیقی لا نقاذالغریق.

د: کله چې ظاهر اسم په منصوب متصل ضمیر عطف شي جائز دی چې فاصل په کې ذکر نه شي. لکه: رأیته و اصد قاءه یعبرون الطریق.

هـــ: کله چې ظاهر اسم په مجرور ضمیر عطف شي، شه دی چې د جر عامل که اسم وي یا حرف له معطوف سره مکرر ذکر شي. لکه:

مررت به و باخیه ـــ رأیت ابا زید و أبا عمرو.

عمومې کتنې د ضمائرو په اړه:

اـــ دی (هم) او (هن) او دې (جماعة د نون) او دې (نسوی د نون) په جمع دې غیر ذوی العقولو کې نه استعمالیږي.

دې (هی) ضمیر د غیر ذوی العقولو ته راجع کیږي او هم دا ډول هغه فعل چې غیر ذوی العقولو جمع ته مسند وي د تأنیث ساکنه تأ او تأ د مضارعت قبلوي. لکه: ارتفعت الطائرات و هی تحلق فوق السحاب. او لکه: تعیش الفیلة فی الغابات.

۲ــ کله چې یأ د متکلم له فعل سره متصل شي د دوی دواړو تر منځ مکسور نون راوړل کیږي چې د وقایه نون ورته وایل کیږي ځکه چې د فعل آخر له کسرې څخه وقایه کوي. لکه: شکرني، یشکرني، أشکرني.

ــ کله چې یاء د متکلم له یوه حرف له حروفو د مشبه بالفعل سره متصل شي جائز دی چې دې وقایه نون مخکې له یأ د متکلم څخه راوړل شي، او دا نون له لیت څخه مخکې ډیر استعمالیږي. لکه: انني متفائل و لیتني انجح.

۳ــ کله چې یأ د متکلم په عن او من مجرور وګرځي، د نون وقایه راوړل مخکې له یأ د متکلم څخه واجب دی. لکه: لما اقترب مني، ذهب الحزن عني.

۴ــ کله چې دوه ضمیره له معلوم فعل سره متصل شي (مبني للفاعل) لومړی ضمیر تل په محل دې رفع کې فاعل وي او دوهم ضمیر په محل دې نصب کې مفعول به دی. لکه: قابلته: تأ متصل ضمیر مبنیٰ پر ضمه په محل د رفع کې فاعل او هاء: متصل ضمیر مبنیٰ پر ضمه په محل دې نصب کې مفعول به.

۵ــ کله چې یأ د متکلم، کاف د خطاب او هأ دې غائب له فعل سره متصل شي دا دریواړه ضمیرونه په دا ډول حالت کې مفعول به او په محل دې نصب کې وي. لکه: سرَّني نجالک. سرَّني: سرّ ماضي فعل مبنیٰ پر فتح او نون، نون د وقایه، یأ متصل ضمیر مبنیٰ په محل د نصب کې مفعول به، نجاحک: نجاح فاعل مرفوع په ضمه او کاف متصل ضمیر مبنیٰ پر فتحه په محل دې جر کې مضاف الیه.

# د اشارى اسم

۱ــ اشاره اسم هغه مبنیٰ دی چې په هغه معین چې دې اشارې پواسطه تعیین شوی دلالت کوي.

۲ــ د اشارى اسمونه عبارت دي له:

الف:

- ذا: د مذکر مفرد لپاره.
- ذی: زه او ته د مؤنث مفرد لپاره.
- ذان: د مذکرې تثنیه لپاره.
- تان: د مؤنثې تثنیه لپاره.
- أوالاء: د مذکرې او مؤنثې جمع لپاره.
- هنا: د مکان لپاره.

ب: کله چې قريب ته اشاره يا په عام ډول اشاره مراد وي، د اشارې له اسم څخه مخکې "ها" چې دې تنبيه په "هاء" يادېږي، راوړل کيږي، په دې اساس دې اشارى اسماً په لاندې ډول دي:

- هذا: د مذکر مفرد لپاره.
- هذه: د مؤنث مفرد لپاره.
- هذان: د مذکرې تثنيې لپاره.
- هاتان: د مؤنثې تثنيې لپاره.
- هؤلاء: د مذکرې او مؤنثې جمع لپاره.
- هاهنا: د قريب مکان لپاره.

ج: خو کله چې د بعيد لپاره د اشارى قصد وشي، کاف اويا کاف او لام دې اشارې اسم په آخر کې راوړل کيږي. چې دا کاف د خطاب کاف بلل کيږي او ددې لپاره

چې حرف دی په محل دی اعراب نشي راتلای. د بعید اشارې اسمونه په لاندې ډول دي:
ذاک او ذلک: د مذکر مفرد لپاره.
تلک: د مؤنث مفرد لپاره.
ذانک او ذلک: د مذکرې او مؤنثې تثنیې لپاره، چې دا دواړه الفاظ لږ استعمالیږي.
اولئک: د مذکرې او مؤنثې جمع لپاره.
هنا او هنالک: د بعید مکان دې اشارې لپاره.
۳ـــ ټول د اشاری اسمونه مبنیٰ دي یواځې "هذان او هاتان" چې دواړه اسمونه معرب دي او د هغوی اعراب لکه د نورو اسمونو د مثنیٰ په ډول ده الف او یأ باندې دی.
ددې لپاره چې د اشارې د اسمونو آخر د مبنیٰ والې له امله تغیر نه مني نو د هغوی د اعراب محلي دی پدې معنی چې د رفع، نصب او جر په محل کې واقع کیږي. لکه:
هذه مدرسة اللغة العربیه. هذه: دې اشارې اسم مبنیٰ پر کسره په محل دی رفع کې مبتدأ. مدرسة: خبر د مبتدأ مرفوع په ضمه.
اللغة: مضاف الیه مجرور په کسره. العربیه: نعت (صفت) د مضاف الیه مجرور په کسره.
۴ـــ کله وروسته د اشارې له اسم څخه، هغه اسم چې مقترن په (ال) وي واقع شي، مقتران په (ال) اسم بدل یا صفت د اشارې د اسم لپاره وي، او په اعراب کې د اشارې دې اسم حکم اخلي. لکه:
هذالطالب مجتهد. هذا: د اشارې اسم مبنیٰ پر سکون په محل دې رفع کې مبتدأ الطالب. د اشارې د اسم بدل مرفوع په ضمه، مجتهد خبر مرفوع په ضمه.
قرأت ها تین القصتین. قرأت: د ماضي فعل مبنیٰ پر سکون (تأ) ضمیر مبنیٰ پر ضمه په محل د رفع کې فاعل "هاتین" د اشارې د اسم بدل او منصوب پر یأ ځکه چې مثنیٰ دی.

**یادونه:**

**الف: د غیر ذوی العقولو جمع ته پواسطه دې هذه، چې د مفردې مؤنثې د اشارې اسم دی، اشاره کیږي او ډیر لږ د "هؤلاء" یا "اولئک" په ذریعه هغې ته اشاره کارول شوی.لکه: هذه المبانی عالیة و تلک المیادین فسیحة.**

**ب: کله چې دې اشارې له اسم سره د خطاب کاف متصل شي او وروسته له هغه څخه مخاطب ذکر شي، کاف په افراد، تثنیه او جمع کې له مخاطب سره یو ډول ګرځي (دی مخاطب مطابق) لکه:**

**ذالک الکتاب مفید یا محمد، ذلکما الکتاب مفید یا صدیقیَّ**

**ذلکم الکتاب مفید یا اصد قاءی، ذلکن الکتاب مفید یا سیداتی.**

**ج: د تشبیه کاف دې اشارې په اسم (ذا) باندې داخلیږي او "کذا" لوستل کیږي. چې دې مِثل یا ډول معنی افاده کوي. لکه: علمت علیا فاضلا و علمت أخاه کذا (یعنی مثله).**

**او کله په "کذا" د تنبیه حرف داخلیږي لکه: أهکذا عرشک او کله لام او کاف وروسته دې هغه اشارې له اسم څخه راوړل کیږي چې د تشبیه کاف پرې داخل شوی وي.لکه:**

**علمت علیا فاضلا و علمت أخاه کذلک.**

# موصول اسم

۱. موصول اسم هغه مبنیٰ اسم دی چې د هغه جملې په واسطه چې له ده وروسته راځي پر شي یا معین شخص دلالت کوي، او نوموړې جملې ته د موصول صله ویل کیږي.

۲. موصوله اسماء په لاندې ډول دي:

– الذی (مذکر مفرد) لکه: حضرالذی نجح.

– اللتی (مؤنث مفرد) لکه: کوفئت الطالبة التی نجحت.

– اللذان (مذکره تثنیه) لکه: سافراللذان اقاما فی الفندق.

– اللتان (مؤنثه تثنیه) لکه: اللتان واظبتا علی الحضور نجحتا.

– اللذین (مذکره جمع د عقلاً لپاره) لکه: لا أحب الذین یتباهون بأعمالهم.

– اللاتی واللاءی (د مؤنث جمع) لکه: أحسنت السیدات اللاتی تکلمن.

– من د ذوالعقولو لپاره که مذکر وي او که مؤنث، مفرد وي که تثنیه یا جمع. لکه: جاء من قام ـــ جاءت من قمت، جاء من قاما ـــ جاءت من قامتا، جاء من قاموا ـــ جاءت من قمن.

– (ما) د غیر ذوی العقولو لپاره که مذکر وي او که مؤنث مفرد وي او که تثنیه او جمع لکه: اعجبنی ما کتبت من قصة، او ما کتبت من قصتین او ما کتبت من قصص.

۳. ټول موصوله اسمونه پرته له اللذان او اللتان مبنیٰ دي او دا دواړه لکه د تثنیې په شان اعراب اخلي سره لدې چې د موصوله اسمونه آخر تغییر نه کوي خو لکه نور مبنیٰ اسمونه په محل دې رفع، نصب او جر کې د موقعیت له لحاظه په جمله کې واقع کیږي. لکه: کوفئ الذین نجحوا فعلیه جمله د (نجح) فاعل (د جمع واو) موصول (الذین) څخه جوړ شوی او الذین نائب فاعل د مجهول فعل (کوفئ) لپاره په محل دې رفع کې. او لکه: إن السیارة اللتی تسیر یحانبا مسرعة. "اللتی" موصول

اسم مبنیٰ پر سکون په محل دې نصب کې نعت (صفت) د اِنّ إسم ـــ تسير فعليه جمله مرکب له فعل او فاعل څخه، صله دموصول.

۴. د موصول صله:

الف: د موصول صله جائز دی چې فعليه جمله وي، لکه په پورتنيو مثالونو کې مو چې وليدل.

ب: د موصول صله جائز دی چې اسميه جمله وي لکه: حضرالذين هم اصدقاءی.

ج: همدا ډول جائز دی چې صله شبه جمله (ظرف يا جار او مجرور) اوسې. لکه: انظر إلى اللوحة اللتی أمامک. امامک: ظرف دی او صله د موصول لپاره.

قطغت الازهار اللتی فی الحديقة. فی الحديقة: جار او مجرور دې صله د موصول لپاره.

ـــ کله چې د موصول صله فعليه يا اسميه جمله وي، واجب دی چې هغه جمله کې داسې يو ضمير وي چې صله له موصول سره د تړی او ددې ضمير مطابقت په نوع او عدد کې له موصول سره ضروري دی. د اضمير د (عائد) په نوم ياديږي. لکه: احسنت السيدات اللتی تکلّمن. په دې شان کې د موصول صله نون د جمع مؤنثې دې (د نون نسوه) چې په عدد او نوع کې له خپل موصول (اللتی) مطابقت لري. او که چيرې عائد د کلام له سياق څخه و پيژندل شي حذف يې جائز دی. لکه:

جاء الذين کافأت (يعني الذين کافئتهم). او دا حذف په داسې مواردو کې راځي چې عائد ضمير او په محل دې نصب کې وي لکه په تير شوي مثال کې همدا ډول دی، هغه صله چې شبه جمله يا جار او مجرور وي د هغه مقدار فعل متعلق ګرځي چې واجب الحذف دی.

دی: قطغت الازها ـــ اللتی فی الحديقة. تقدير داسې دی: الازهار اللتی إستقرت فی الحديقة.

**يادونه:**

**الف: ليدل کيږي چې موصوله اسمونه (الذين، اللاتى او اللائى) د ذوى العقولو د جمع لپاره او (اللتى) او (ما) د غير ذوى العقولو لپاره استعماليږي. لکه:**

**قرأت المقالات اللتى کتبتها (يا) قرأت ما کتبت من المقالات.**

**ب: دى (أى) هغه وخت موصول اسم واقع کيږي چې د هغه پر ځاى موصوله (من) يا (ما) راشي. او په دې حالت کې معرب دى. لکه: يعجبنى أىٍّ أدىً واجبه. أى: موصول اسم فاعل مرفوع په ضمه.**

## د شرط إسم

**۱. د شرط اسم هغه مبنىٰ دى چې دوه جملې سره يوځاى کوي او لومړې جمله د دوهمې جملې د تحقق لپاره، شرط ګرځوي.**

**۲. د شرط اسمونه په لاندې ډول دي:**

**من، ما، متى، مهما، ايان، أين، اينما، أنىّ، حيث، کيفما او أىُّ.**

**۳. د شرط اسمونه پرته له (أىُّ) څخه ټول مبنىٰ دي او د خپل موقعيت له حيثه په جمله کې د اعراب په محل کې واقع کيږي او ورستى برخه يې تغيير نه خوري په خپل حال پاتې کيږي. لکه:**

**من يزرع يحصد. من د شرط اسم مبنىٰ پر سکون په محل دې فعل کې مبتدأ.**

**يادونه:**

**د شرط اسمونه شرحه د فعل و مضارع د جز په بحث کې په تفصيل ذکر کيږي.**

## د استفهام إسم

۱. د استفهام اسم هغه مبنیٰ اسم دی چې (د یوه شي د پیژندنې لپاره د هغه پواسطه پوښتنه تر سره کیږي).
۲. د استفهام اسمونه عبارت دي له: من، ما، متی، أین، کم، کیف، او أیُّ څخه.
۳. د استفهام اسمونه پرته له (أیُّ) څخه ټول مبنیٰ دی او د موقعیت له حیثه په جمله کې د اعراب په محل کې واقع کیږي او آخر یې بې له کوم تغییر څخه په خپل حالت پاتې کیږي.
ـــ د استفهام اسمونه: د کلام په لومړې سر کې راځي او د حرف لومړې توب پرې جائز دي. لکه: من أحب الفنانین إلیک؟
من د اسفهام اسم مبنیٰ پر سکون په محل د رفع کې مبتدأ.
بکم اشتریت هذالکتاب. بکم: باء حرف جر ـــ کم د استفهام اسم مبنیٰ پر سکون په محل دې جر کې.
یادونه:
د استفهام د اسمونو شرحه دی (استفهام د روشونو په برخه کې) راوړل کیږي.

## مرکب اعداد

### له ۱۱ ـــ ۱۹ پورې پرته له ۱۲ څخه

۱. مرکب اعداد چې له یولسو بیا تر نولسو پورې دواړه برخې یې مبنیٰ پر فتحه دي پرته له دولسو څخه چې لومړې برخهٔ د مثنیٰ په اعراب راځي او د تمییز په برخه کې ددې مطلب شرحه وشوه.
۲. دا اعداد د دواړو برخو په فتحه د بنأ له ساتلو سره سره په جمله کې د اعراب په محل کې واقع کیږي او لکه نور مبنیٰ اسمونه په محل د رفع نصب او جر کې راځي.

لکه: جاء اربعةَ عشرَ طالباً. اربعة عشر: مرکب عدد دی او دواړه برخې یې په محل دې رفع کې فاعل دي. طالباً: تمییز منصوب په فتحه.

**ځینې (بعض) مبنیٰ ظروف:**

۱. د ظروفو په اړه مو د منصوب اسم په برخه کې یو څه ولوستل چې ظروف ښایې چې معرب وي خو بیا هم ځینې حروف مبنیٰ راغلي دي چې په لاندې ډول دي:
حیث، امس، الأن، إذ، أین او ثُمّ. لکه: جلست حیث کنت جالسا. حیث د مکان ظرف مبنیٰ پر ضمه په محل دې نصب کې مفعول فیه.
۲. همدا ډول هغه ظروف چې مرکب استعمالیږي مبنیٰ دي. لکه: لیل نهار و بین بین.

**یادونه:**

"إذ" په تیره زمانه باندې دلالت کوي او مبنیٰ پر سکون دی او جملې ته مضاف کیږي. لکه: جئتک إذ قام محمدٌ. او کله چې مضاف نه وي نو له داسې کلمو سره ملحق وي چې په زمانه باندې دلالت کوي نو په دې صورت کې منون راځي. لکه: حینئذٍ، وقتئذٍ، یومئذٍ.

## اُسماءالافعال

۱. اسماء الافعال هغه مبنیٰ اسمونه دي چې د فعل په معنی دي خو د فعل علامې (نښې) نه قبلوي.

۲. اسماءالافعال د زماني له حيثه په دری ډوله دی:

الف: د ماضي اسماءالافعال چې دا اسمونه د ماضي د فعل پر معنیٰ دلالت کوي. او په هغوی کې هيهات (بَعُدَ) ـــ شتان (إفترق) ـــ سرعان (سرع) مهم ګڼل شوي دي.

ب: د مضارع اسماءالفعال: دا إسمونه پر معنی د فعل مضارع دلالت کوي چې مهم يې په لاندې ډول دي: أفّ (تفجّر)، آه (توجع) وی (تعجب) او عطّ (يکفی)

ج: د امر اسماءالفعال: چې دی امر په فعل دلالت کوي او په لاندې ډول دي:

إيه (أی زد) ـــ آمين (ای استجب) ـــ هيا (ای أسرع) ـــ صه (ای أسکت) ـــ حیّ (ای اقبل) ـــ هاک (ای خذ) ـــ عليک (ای الزم) ـــ دونک (ای اخذ).

علاوه له پورتنيو د امر له اسماءالفعالو څخه ممکن له هر ثلاثي متصرف تام فعل څخه پر وزن د فَعَالِ فعل امر جوړ شي لکه: حذار په معنی دې (اُحذر) دفاع په معنی دی (ادفع) او سماع په معنی دې (اسمع).

۳. د اسماء الفعال، مبنیٰ اسمونه دي د مفرد، مثنیٰ او جمع لپاره يو ډول استعماليږي. لکه:

حی على الصلاة أيهاالرجل، حی على الصلاة ايها الرجلان او حی على الصلاة ايها الرجال.

خو هغه اسماءالفعال چې د خطاب له کاف سره متصل شي کاف يې د مخاطب په تناسب ذکر کيږي. لکه چې وايو: هاک موضوعا ينا سبک وهاکم موضوعا يناسبکم.

۴. الاسماءالفعال د هغه فعل عمل کوي کوم چې د هغه نائب وي نوفاعل مرفوع، او مفعول به منصوب ګرځوي. لکه:

هيهات الامل فی النجاح (ای بَعُدَ الامل فی النجاح) هيهات:

اسم فعل ماضي مبنیٰ پر فتحه الامل دی اسم فعل (هیهات) فاعل مرفوع په ضمه. او لکه: حی علی الصلاة. حیَّ د امر اسم فعل په معنی دې اقبل مبنیٰ پر فتحه او فاعل یې مستتر ضمیر تقدیر یې انت.

علی الصلاة، جار او مجرور متعلق د حیّ. او لکه: حذار الاسد. حذار: د امر اسم فعل مبنی پر کسره او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې انت دی.

الاسد: مفعول به دی (حذار) چې اسم فعل دی منصوب په فتحه. او لکه:

صرفت در همین فقط (ای صرفت درهمین فیکفی).

صرفت: صرف د ماضي فعل تاء د هغه فاعل او درهمین: مفعول به منصوب په یاء ځکه چې تثنیه دی.

فقط: فاء د عطف حرف ــ قط د مضارع اسم فعل په معنی د یکفی مبنیٰ پر سکون او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې (هو) کیږي.

## د مبنیٰ اسم په هکله څو مهم ټکي:

د بحث په پایله کې د مبنیٰ اسم په هکله د څو مهمو ټکو یادونه په لاندې ډول کیږي:

۱. دهر مبنیٰ اسم ورستۍ برخه که ساکن وي که مفتوح، مضموم وي که مکسور تل په خپل حالت باقي پاتې کیږي که څه هم نوموړی اسم په محل د رفع، نصب یا جر په اساس دې اعراب کې واقع شوی وي. لکه:

حضر هؤلاء الرجال. هؤلاء: د اشاری اسم مبنیٰ پر کسره په محل دې رفع کې فاعل. الرجال: بدل له فاعله دی (اشارې دې اسم) څخه منصوب په فتحه ــ مررت بهؤلاء الرجال. هؤلاء:

دی اشارې اسم مبنیٰ پر سکون په محل دې جر کې ــ الرجال: بدل دی اشارې له اسم څخه مجرور په کسره.

۲. مبنیٰ اسمونه منون (تنوین لرونکې) نه ګرځي. کله چې معرب اسم په عارضی بنأ باندې مبنیٰ وګرځي لکه نو مبنیات نه منون کیږي. لکه: یا محمدُ چې دی محمد د (ال) په تنوین نطق نه کیږي او یواځي په غیرمنونه ضمه تلفظ کیږي.
همدا ډول لارجل فی الدار.لا رجلاً نه ویل کیږي همدا ډول
تحیة طیبة و بعدُ. چې بعدُ منونه نه تلفظ کیږي.

# دوهم باب

# فعل

**فعل د اعراب او بناء له حیثه:**

فعل هغه کلمه ده چې په یوه خاصه زمانه کې د یوه شی په حدوث دلالت کوي. فعل د جوړښت له حیثه په دوهمه برخه د همدې کتاب کې څېړل کیږي. خو فعل د نحوی قواعدو له حیثه چې په دې برخه څېړل کیږي په دوه ډوله دی:

مبنیٰ او معرب:

مبنیٰ فعل هغه فعل دی چې وروستۍ برخه یې د موقعیت له لحاظه په کلام کې تغییر نه منې. لکه د کَتَبَ، چې ماضي فعل دی او په هر ځای د کلام کې چې راشي اخر یې مبنیٰ پر فتحه دی او تغییر نه منې لکه: کتب زید رسالة. یا: ماکتب زید رسالة.

دی (یکتب) فعل، چې د مضارع فعل دی وروستې برخه یې د موقعیت له حیثه په کلام کې تغییر کوي. کله وایو زید یَکْتُبُ رسالة.

چې دې (یکتب) آخر مفهوم او کله چې اووایو: زید یَکْتُبُ، آخر یې مفتوح او کله چې وویل شي: زید لم یکتُبْ رسالة. د فعل آخر مجزوم (ساکن) کیږي.

پدې پوه شوو چې ماضي فعل مبنیٰ او مضارع فعل معرب دی همدا ډول د امر فعل هم مبنیٰ دی او د یادولو وړ دی چې د ماضي او امر فعلونه تل مبنیٰ دي خو مضارع فعل که څه هم په اصل کې معرب دی خو کله چې د نسوی له نون یا د توکید له نون سره متصل او یو ځای شي نو مبنیٰ ګرځي.

په لومړي فصل کې به ددې موضوع تفصیل وشي.

# لومړی څپرکی
# مبنی فعلونه

مبنی فعلونه عبارت دي له:

۱. د ماضي فعل.

۲. د امر فعل.

۳. هغه د مضارع فعل چې له نون دی نسوې او نون د تاکید سره بې له کوم فاصله یوځای شوی وي.

**۱. د ماضي فعل او د هغه بناء:**

د ماضي فعل په هر ځای کې چې وي مبنیٰ دی او په لاندې ډول دي:

۱. مبنیٰ پر سکون: او دا په هغه صورت کې دی چې له تاء د فاعل، نا د متکلم مع الغیر یا د نسوې له نون سره یوځای او متصل شي. لکه:

شکرتُ، شکرتَ، شکرتِ، شکرتما، شکرتن.

(د فاعل د تاء مثالونه) شکرنا (متکلم مع الغیر د (نا) مثال او شکرن (د نسوی د نون مثال).

۲. مبنیٰ پر ضمه: یعنی وروستۍ حرف د ماضي د فعل مضموم وي او دا په هغه صورت کې دی چې دا فعل د جمع له واو سره چې د هغه فاعل دی یوځای شي. لکه: شکروا.

۳. مبنیٰ پر فتحه: یعنی وروستۍ حرف د ماضي د فعل فتحه ولري چې په لاندې ډول دي:

* کله چې له تاء د تأنیث، یا الف د تثنیه سره یوځای شي. لکه: شکرَتْ، شکرَا، شکرَتا.

* کله چې د نصب له متصلو ضمائرو (د متکم یاء ـــ نا ـــ دخطاب کاف د غائب ها) سره یوځای شي. لکه: شکرنی، شکرنا، شکرک، شکرما، شکرکم، شکرکن، شکره، شکرها، شکرهما، شکرهم، شکرهن.

**۲. د امر فعل او د هغه بناء:**

**د امر فعل مطلقاً مبنیٰ او د بناء علامې (نښې) یې په لاندې ډول دي:**

**۱. سکون: کله چې د امر وروستۍ حرف صحیح وي او بل شي سره نه وي متصل او یا د نسوې له نون سره متصل وي لکه: اشکُرْ ـــ اشکرْن**

**۲. مبنیٰ پر فتحه: کله چې د تأکید له نون سره متصل وي لکه: اشکرَنّ.**

**۳. د نون په حذف: کله چې د تثنیه نون، د مخاطب یاء او د جماعه واو د فعل له امر سره متصل شي. لکه: اشکرا، اشکروا، اشکری.**

**۴. حرف علة حذف کله چې معتل الاخر وي. لکه: ارضَ، أعطف، اِرْم، تعال (ای احضر و اصلها تعالی).**

**یادونه:**

**ومو لیدل کله چې د امر فعل معتل الاخر وي د حرف علة په حذف مبنیٰ ګرځي. خو کله چې صحیح الاخر وي او ماقبل آخر یې حرف علة وي. لکه: کان، سار، اضاع، استفاد ... الخ**

**په دې ډول کې د امر فعل مبنیٰ پر سکون د وروستې حرف ګرځي او په ځینو تصاریفو کې د علة حرف چې د ماقبل له آخر حرف څخه دی حذفیږي. لکه:**

**کن ـــ سر ـــ اضع ـــ استفد. د ا حذف ددې لپاره کیږي چې د دوؤ ساکنو حروفو له یوځای توب څخه ډډه وشي، ځکه چې د علت حرف ساکن دی کله چې د فعل وروستې برخه مبنیٰ پر سکون شي نو ساکنه یاء حذفیږي او په کومو صیغو کې چې د امر د فعل جوړول التقاء ساکنین منځ ته نه راوړې (یاء) په خپل حال پاتې کیږي. لکه: سیرا، سیروا، سیری. همدا ډول کله چې د واحد امر له صیغې سره نون د تاکید**

یوځای شي او التقاء ساکنین لرې کړي، یاء بیرته راګرځي لکه: سیرنّ، اضیعنَّ او استفیدَنَّ.

**۳. د مضارع فعل او د هغه بناء:**

د مضارع فعل په اصل کې معرب دی (دا موضوع د معرب په بحث کې یادیږي) خو کله چې نون د نسوې او نون د تأکید بې له کوم فاصله له هغه سره یوځای شي، مبنیٰ ګرځي.

۱. په سکون مبنیٰ ګرځي: کله چې نون د نسوې له مضارع فعل سره یوځای شي هغه فعل مبنیٰ ګرځي. لکه: هن لیشکرنَّ.

۲. په فتحه مبنیٰ ګرځي: کله چې د تأکید نون بې له کوم فاصل څخه له مضارع فعل سره یوځای شي نو فعل مبنیٰ پر فتحه ګرځي. لکه: هن لیشکرنَّ.

او که چیرې د مضارع فعل د تاکید له نون سره بې له کوم فاصل نوه یعني د تثنیه الف، یا د جمع واو، د مخاطبې یاء ، یاء د نسوې نون ته مسندوه په دې دریوارو شکلونو کې د مضارع فعل معرب دی ځکه چې د تثنیې الف، د جمع واو، او مخاطبې یاء د مضارع فعل او د تاکید نون تر منځ واقع کیږي نو اتصال جائز نه دی. لکه: لاتنصرانّ الظالم ــ لاتنصُرن الظالم ــ لاتنصرِنّ الظالم.

او په څلورم حالت کې چې د مضارع فعل د نسوې له نون سره متصل شي مبنیٰ پر سکون ګرځي که څه هم الف فاصل واقع شوی دی. لکه: لا تنصرنان الظالم چې په دې صورت کې الف د نسوې او تأکید نون تر منځ راوړل کیږي څو دې دریو نونانو توالی (پرلپسې والی) را نه شي.

**یادونه:**

د تأکید نون هغه نون دی چې د مضارع فعل او امر په آخر کې زیاتیږي (دا خبره په خپل ځای کې شرحه کیږي).

د تأکید نون په دوه ډوله دی:

ثقلیه نون: دا نون مشدد او مفتوح دی له: أکتبنَّ.
خفیفه نون: دا نون ساکن وي لکه: لتکتبنْ، اکتبنْ.

**د تأکید نون د استعمال ځایونه:**

الف: د مضارع د فعل تأکید په نون واجب دی کله چې د مضارع فعل د قسم جواب او د قسم له لام سره متصل وي. لکه: و الله لا کرمنّ الغائز (اولأکرمن).
ب: کله چې د مضارع فعل په امر، نهی یا استفهام دلالت وکړئ د هغه تأکید جائز دی. لکه: لینفق القادرون. یا لینفقنّ القادرون.
ــ لا تمدم امرًا حتی تجربه یا لا تمدحنَّ.
ــ أتوافق علی هذالرأی. یا اُتوافقنَّ علی هذا لرأی.
ج: د مضارع فعل تأکید د نومورو حالاتو پرته ممنوع دی لکه:
تشرق الشمس کل صباح.
د: د امر د فعل تأکید جائز دی. لکه: اطع والدیک أطیعَنَّ والدیک یا اطیعنْ والدیک.
هــ: د ماضي فعل په نون نه مؤکد کیږي.

# دوهم څپرکی
# د معرب فعل

د افعالو له ډلې څخه یوائې د مضارع فعل معرب دی او دا هم په هغه صورتونو کې چې له نون د نسوې او یا نون د تأکید سره مباشر تا متصل نه وي.

او مضارع معرب فعل، مرفوع، منصوب او مجزوم ته تقسیمیږي.

۱. مضارع معرب فعل: هغه وخت وي چې د نصب او جذم په حرف مسبوق نه وي.

۲. د مضارع د فعل د رفع علامې عبارت دي له:

الف: ضمه لکه: انا اکتب، نحن نکتب، انت تکتب، هو یکتب او هی تکتب.

ب: د نون ثبوت: د ضمې په نیابت کله چې فعل د افعالو خمسۀ له ډلې څخه وي افعال خمسه عبارت دي له هر هغه مضارع فعل څخه چې د تثنیې له الف، واو د جمع او یأ د مخاطب سره متصل شي.

(یفعلان ــ تفعلان ــ یفعلون ــ تفعلون ــ تفعلین).

لکه: انتما تکتبان، هما یکتبان، انتم تکتبون، هم یکتبون، انتِ تکتبین.

**یادونه:**

کله چې مضارع فعل معتل الاخر (یعني ورستی حرف یې الف، واو یا یأ) وي د رفع علامه یې په ورستې حرف مقدره ضمه وي. لکه:

- زید یسعی: یسعی معتل الاخر فعل په الف مرفوع په مقدره ضمه.
- بکر سیمو. سیمو: د مضارع فعل معتل الاخر په الف او مرفوع په مقدره ضمه پر واو.
- خالد یرمی: یرمی معتل الاخر په یاء او مرفوع په مقدره ضمه پر یاء.

**۲. دمضارع فعل نصب:**

۱. مضارع فعل هغه وخت منصوب ګرځي چې یو له حروفو د نصب څخه مباشر تا له د ه څخه مخکې ذکر شوی وي.

۲. د مضارع فعل د نصب علامې (نښې) په لاندې ډول دي:

الف: فتحه: لکه لن اکتبَ، لن تکتُبَ، لن نکتُبَ، لن یکتبَ.

ب: د نون حذف: په افعال خمسه ؤ کې د فتحې په نیابت لکه: لن تکتُبا، لن یکتبا، لن تکتبوا، لن یکتبوا، لن تکتبی.

۳. د مضارع د فعل د نصب عوامل (دی نصب حروف):

أن ــ لن ــ کی ــ إذن ــ لام د تعلیل ــ لام د جحود ــ فاء د سبب ــ حتی. چې په لنډ ډول شرحه کیږي.

أن (المصدریة): مصدري والی یې په دې معنی دی چې أن او د هغه معمول (د مضارع فعل) ښایي په تأ ویل دې مصدر ووسې. لکه: یسرنی أن تقدم. تقدم: د مضارع فعل او منصوب د اَنْ پواسطه او د نصب علامه کې فتحه او د مستتر ضمیر چې تقدیر یې انت دی د تقدم فاعل، مؤل مصدر د أن او فعل څخه چې تقدمک فاعل د یسرنی دی.

لن: د مستقبل د نفې لپاره: لکه لن یضیع الحق المغتصب. یضیع: د مضارع منصوب فعل چې عامل یې لن دی.

کی: د تعلیل لپاره: لکه ادرسا کې تنجحا. تنجحا: منصوبه مضارع فعل د تثنیې د نون په حذف او عامل یې کی.

اذن: د تیر شوي کلام د ځواب لپاره. لکه: اذن اکرمَک.

د هغه چا په ځواب کې او وایې آتیک.

اُکْرِمَ: مضارع منصوب پر فتحه او عامل یې اذن.

د تعلیل لام: د کی په معنی لکه: اعملوالتعیشواسعداءُ.

تعیشوا: د مضارع فعل منصوب پر حذف د نون او عامل یې لام د تعلیل.

د جحو د لام: د انکار لام چې د منفي کان فعل باندې مسبوق وي لکه: لم اکنِ لأ لْهُوَ و الامرجد. الهوَ: د مضارع فعل منصوب په فتحه او عامل یې د جحو د لام دی.

د سبب فاء: د دې (فاء) ماقبل د مابعد لپاره سبب وي. په نفې یا مطلب (امر، نهی، استفهام) مسبوق وي لکه:کونو یدًا و احدًا افتفوزوا. تفوزوا: منصوب په حذف د نون او عامل یې فاء دی سببیت.

حتیٰ: د غائې یا تعلیل لپاره: لکه جاهد حتی تصل الی ما تصبوالیه.

تصل: د مضارع فعل منصوب په فتحه او عامل یې حتیٰ دی.

**یادونه:**

أن په (لا) نافیه کې مدغم کیږي او عمل یې د یوه ناحب حرف په حیث باقې پاتې کیږي. لکه: طلبت منه الاّ یغادر هذالمکان.

الاَّ: أن مصدریه حرف د نصب. لا د نفي حرف.یغادر: د مضارع فعل منصوب په فتحه او فاعل یې مستتر ضمیر چې هو دی.

۱. کله چې د مضارع فعل معتل الاخر په الف، واو او یا یاء باندې وي په لاندې ډول منصوب ګرځي:

ـــ په مقدره فتحه که وروستۍ حرف یې الف وي لکه: لن یرضی لن یتباری.

ـــ په ظاهره فتحه ې وروستۍ حرف یې واو وي لکه: لن یشکوَ، لن یبنی.

**۳. د مضارع د فعل جزم:**

۱. مضارع فعل هغه وخت مجزوم کیږي چې په یوه له ادواتو د جزم څخه مسبوق وي.

۲. د مضارع فعل د جزم علامې (نښې):

الف: سکون دی لکه: لم اکتبْ ـــ لم تکتب ـــ لم نکتب ـــ لم یکتب .

ب: د سکون په نیابت په لاندې دول:

ــ د نون حذف: کله چې فعل د افعال خمسه ؤ څخه وي لکه: لم تکتبا، لم يکتبا، لم تکتبوا، لم يکتبوا، لم تکتبی.

ــ د حرف علة حذف: په هغه صورت کې چې فعل معتل الاخر وي. لکه: لم يرض، لم يشک، لم يرم.

۳. د مضارع فعل د جذم ادوات په دوه ډوله دي:

هغه ادوات چې يو فعل مجزوم ګرځوي چې عبارت دی له: لم، لما، د امر لام، د نهی لام. او دا ټول ادوات حروف دي او د جزم د حروفو په نوم ياديږي. چې په لنډه توګه شرحه کيږي:

لم: د مضارع په فعل داخليږي او مضارع منفې ماضي په معنی ګرځوي. لکه لم يحضر محمود (محمود حاضر نه شه) يَحْضُرْ د مضارع فعل او مجزوم په سکون.

لما: دا حرف د مضارع په فعل داخليږي د ماضي نفې د تکلم تر زمانۍ پورې کوي لکه: جاء موعد الامتحان و لما تدرسوا. (امتحان وخت راورسيد او تر اوسه مو هم درس ندی ويلي).

تدرسوا: د مضارع فعل او مجزوم په حذف د نون.

د امر لام: د مضارع په فعل داخليږي او طلب افاده کوي: لينفق صاحب الغنی من غناه. ينفق: د مضارع فعل مجزوم په سکون.

د نهی لام: د مضارع په فعل داخليږي او نهی افاده کوي لکه: لاتنس المعروف.

تنس: د مضارع فعل مجزوم په حذف دی حرف علت.

ب: هغه ادوات چې دوه فعل مجزم ګرځوي:

ان ــ من ــ مهما ــ متی ــ ايان ــ اين ــ أينما ــ أنی ــ حيما ــ کيفما ــ ایّ.

پورتنې ادوات د شرط ادوات بلل کيږي. د فعل شرط او د فعل شرط د جواب جازم دی. او ټول دا ادوات اسمونه دي او يوائې (إن) چې حرف دی. همدا ډول نوموړي ادوات مبنیٰ دي او يوائې (اَیَّ) چې معرب دی او په لاندې ډول شرحه کيږي:

إن: هغه د شرط د ځواب د شرط له فعل سره معلق کوي د شرط د فعل او د هغه ځواب معنی مستقبل ګرځوي که څه هم په لفظ کې ماضي وي او که چیرې د شرط فعل او دهغه د ځواب فعل مضارع وي دواړه مجزوم ګرځوي. لکه: إن تعمل تنجح.
اِن: د شرط حرف او د مضارع د دواړو فعلونو جازم مبنیٰ پر سکون، تعمل: شرط فعل مجزوم په سکون او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې (انت) دی. اِن حرف دی او د اعراب محل نه لري.
مَن: دا د شرط اسم د عاقل لپاره استعمالیږي د شرط او جزا فعلونه مجزوم ګرځوي او په خپله (من) یا په محل د رفع کې مبتدأ وي دا په هغه صورت کې چې د شرط فعل یا لازمي یا ناقص یا متعدی وي خو متعدی فعل پر (من) نه وي واقع شوی.
یا من په محل د نصب کې مفعول به راځي او دا په هغه صورت کې چې د شرط فعل متعدی وي او پر معنیٰ د (مَن) واقع شوی وي. لکه:
مَنْ يَكْثُرْ كلامُهُ، يَكْثُرْ مَلاَمُه ـــ من يكن عَجْو لاً يكثُرْ زَلَلُهُ.
من يحترمَ الناس يحتر موه ـــ مَنْ تَرَ يَأتِکَ.
په لومړی او دوهمه جمله کې د شرط فعل او د هغه ځواب دواړه مجزوم پر سکون دي، په دریمه جمله کې د شرط فعل مجزوم په سکون او ځواب یې مجزوم حذف په نون دی، او په څلورمه جمله کې شرط او جزا دواړه مجزوم په حذف دي حرف علة دی.
من په لومړیو دریواړو جملو کې په محل د رفع کې مبتدأ ځکه چې په لومړی جمله د شرط فعل لازمي په دوهمه جمله کې د شرط فعل ناقص او په دریمه جمله کې د شرط فعل متعدی دی خو د (مَنْ) پر معنیٰ نه دې واقع شوی.
خو په ورستي مثال کې څرنګه چې فعل متعدی دی او د (مَنْ) پر معنیٰ یا د هغه پر مصداق واقع شوی د مَنْ په محل د نصب کې مفعول به دی.
ما او مهما: دا دواړه ادوات دي غیر عاقل لپاره استعمالیږي. یا په محل د رفع کې مبتدأ واقع کیږي لکه په دری لومړیو مثالونو کې مو چې (مَنْ) ولید، او یا په محل د

نصب کې مفعول به لکه چې په څلورم مثال کې مو چې ولیدل لکه: مهما تقرأ یزدک معرفة.
مهما: د شرط اسم او جازم مبنیٰ په محل د نصب کې مفعول به ځکه چې د شرط فعل (تقرأ) دمهما پر معنی واقع دی.
تقرأ: د شرط فعل مجزوم په سکون او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې (أنت) دی.
یزدک: د شرط ځواب مجزوم په سکون او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې (هو) دی، کاف: ضمیر مبنیٰ په محل د نصب کې مفعول به.
متی ــ أیان:
دا دواړه ادوات په زمانه دلالت کوي او محلی اعراب یې نصب دي. ځکه چې مفعول فیه د شرط د فعل لپاره دی (د زمان ظرف) لکه:
متی یأت الصیف یسافر الناس الی المصایف.
أیان تکن و فیا یکثر محبوک.
أین: أین یکثر الظلم یضعف العمران.
أینما: اینما یسد الا من تعم الطمانینة.
أنی: أنی یجر نهر خمس الاسد تخصب الارض.
حیثما: حیثما تذهب أذهب.
څلور واړه پورتني ادوات (د مکان ظرفیت) افاده کوي او په محل د نصب کې مفعول فیه (د مکان ظرف) د شرط فعل لپاره په پورتنیو مثالونو کې نوموړي ادوات د شرط فعل او د هغه ځواب مجزوم ګرځولي.
کیفما: د حال لپاره او په محل د نصب کې حال دی شرط د فعل دی فاعل لپاره که چیرې فعل تام وي. او که چیرې د شرط فعل ناقص وي په دې صورت کې کیفما خبر دی ناقص فعل لپاره په محل د نصب کې واقع کیږي. لکه:
ــ کیفما تعامل الناس یعاملوک (حال) ــ کیفما یکن المعلم یکن تلامیذه.

اَیَّ: دا ادوات معرب دي او د مضاف اليه په اعتبار د ذوی العقولو او غير ذوی العقولو زمان، مکان او حال لپاره استعماليږي.
او کله چې اسم ذات ته مضاف وي مبتدأ دی. کله چې زمان يا مکان ته مضاف وي مفعول فيه او که مصدر ته مضاف وي مفعول مطلق او که چيرې داسې لفظ ته مضاف شي، چې حال افاده کړئ، حال ګرځي.
په (أیّ) اصل دادی چې د مذکر، مؤنث، مفرد، مثنیٰ او جمع لپاره په يوه لفظ استعماليږي خو دا جائز دی چې له مؤنثی مضاف اليه سره تاء واخلي. لکه:
أی امرأة يا أية امرأة تخلص فی عملها يخدم بلادها.
اَیُّ، او يا أية. مرفوع مبتدأ په ضمه دی ځکه چې اسم ذات ته مضاف شوی او لکه:
أیّ نفع تنفع الناس يشکروک.
أیّ: مفعو مطلق او نصوب په فتحه دی ځکه چې مصدر ته مضاف شوی.

**۴. د شرط فعل حذف:**

کله چې شرطيه "إن" په نافيه (لا) کې مدغم شي جائز دی چې د شرط فعل حذف شي. لکه: عامل الناس بالحسنی والايکروهوک.
واو د عطف ــ الاَّ (إن + لا) إن د شرط حرف او جازم ــ لا د نفی حرف او د شرط فعل محذوف چې تعامل دی. يکرهون: د مضارع فعل مجزوم په حذف دی نون واو فاعل او کاف ضمير مبنیٰ په محل د نصب کې مفعول به.
او ټوله جمله ځواب د شرط، دا ډول هم جائز دی چې وويل شي:
عامل الناس بالحسنی و إلا تعاملهم بالحسنی يکرهوک.
د مضارع فعل جزم د طلب په ځواب کې:
کله د مضارع فعل د امر او نهی په ځواب کې مجزوم ګرځي او عامل د جزم مخدوف شرط دی او د فعل مضارع و جزم شرط چې ورسته له نهی واقع شي دادی چې که چيرې مخکې له "لا" ناهيی (إن) فرض شي معنی ښه افاده کوي. او ورروسته

له غیر د نهی څخه د فعل مضارع د جزم شرط دادی چې (إن) او یو داسې فعل راوړل شي چې له سیاق څخه وپیژندل شي او صحیح معنی افاده کړایشي. لکه:
لا تکثر العتاب یکثر اصدقاءک.
احترم الناس یحترموک. أین الحدیقة نذهب الیها.
که چیرې په لومړي مثال کې (إن) له (لا) څخه مخکې راوړو نو صحیح معنی افاده کوي او په دوهم مثال کې که وویل شي: إن تحترم الناس یحترموک او په دریم مثال کې که ووایوک إن تی الحدیقة نذهب الیها.
نو په پورتنیو مثالونو کې د (إن) راوړل مخکې له (لا) او دان او داسې فعل راوړل چې له سیاق څخه و پیژندل شي، معنی صحیح کیږي. نو په دې شکلونو د فعل مضارع جزم په ځواب کې جائز دی.
او که چیرې وویل شي چې: لا تصنع المعروف فی غیراهله تنم.
د إن په راوړلو سره مخکې له (لا) څخه معنی فاسد ګرځي، همدا ډول که اووایو: ساعد اخاک لا یساعدک په تقدیر د إن او یا داسې فعل په راوړلو سیاق څخه افاده شي معنی نه صحیح کیږي نو ویلای شو چې په دې دواړو وروستیو مثالونو کې د فعل مضارع جزم د طلب په ځواب کې جواز نه لري.

**عمومي یا دوني د فعل مضارع د جزم په اړوند:**
الف: معتل الاخر فعل مضارع په حذف دی حرف علت مجزوم کیږي. لکه:
لم یعفُ ـــ لم یرضَ ـــ لم یرم.
که چیرې د مضارع د فعل وروستی حرف صحیح او ماقبل آخر یې حرف علة وي نو مجزوم په سکون ګرځي او ماقبل آخر چې حرف علة وي د التقاً ساکنینو له وجهی، حرف علت حذفیږي. لکه: لم یکن ـــ لم یکد ـــ لم یستطع چې په اصل کې یکون ـــ یکاد ـــ یستطیع دی.

ب: دا حتمي ندی چې د شرط او جزا فعلونه دواړه مضارع اوسي کیدایشي کله دواړه ماضي فعل، کله یو ماضي فعل او بل مضارع اوسي نو که چیرې:
ــ دواړه فعلونه (شرط او جزا) مضارع فعل دی دواړه مجزوم ګرځي.
ــ او که چیرې یو د هغوي مضارع او بل یې ماضي فعل وي، یواځي مضارع فعل مجزوم او ماضي فعل مبنیٰ او په محل د جزم که واقع کیږي. لکه:
إن جأ زید یقم عمرو.
او که چیرې دواړه فعل ماضي وي نو دواړه فعلونه مبنیٰ په محل د جزم کې دی لکه:
إن أحسنتم أحسنتم لانفسکم ــ من صبر ظفر.
ج: دی، من ــ ما ــ متی ــ این او أیَّ کلمي کله د شرط د ادواتو په حیث او کله د استفهام د ادواتو په حیث استعمالیږي او په دواړو حالاتو کې مبنیٰ پرته له (أیّ) څخه چې په دواړو حالاتو کې معرب بلل کیږي.
کله چې دا کلمات د شرط د ادواتو په حیث استعمال شي د جملې په لومړي سر کې راځي او دوه فعلونه مجزوم ګرځوي.
خو کله چې دی استفهام د ادواتو په حیث وکارول شي بیا هم د جملې په لومړي سر کې راځي او روادی چې مضاف وي او مسبوق په حرف جر شي او په ورستي فصل کې کوم اثر نه لري او د موقعیت په اساس په جمله کې اعراب اخلي او پرته له (ایّ) څخه د ټولو اعراب محلي دی.
دا جزه به د شرط او استفهام د کړنلارو (اسلوب) په برخي کې ښه توضیح شي.

# دریم باب

# حرف

حرف داسي یوه کلمه ده چې بې له یوځای کیدلو د بلي کلمي خپله معنی نشي افاده کولی. حروف په عربي ژبه کې دیر نه دي او له اتیاؤ حروفو څخه نه زیاتیږي.
ټول حروف مبنیٰ دي: څه مبنیٰ پر سکون، بعض مبنیٰ پر فتحه څه مبنیٰ پر ضمه او پر کسره .

* په سکون مبنیٰ لکه: لنْ، هلْ، إلی، فیْ، أو، بل، لم.
* په فتحه مبنیٰ لکه: ثمَّ، إنَّ، أنَّ، لکنَّ، لیتَ.
* په ضمه مبنیٰ لکه: منذُ، عوضُ.
* په کسره مبنیٰ لکه: بأ جاره ــ لام جاره.

حروف د موقعیت له حیثه په جمله کې او همدا ډول د تاثیر له لحاظه په ورستیو کلماتو کې کولای شو په لاندې ډول سره وشنو:

I. هغه حروف چې یوائې اسم ته مختص دي او په نورو کلماتو تأثیر نه لري.
II. هغه حروف چې یوائې فعل ته مختص دي او په اسم تأثیر نه لري.
III. هغه حروف چې کله په اسم او کله په فعل داخلیږي.

# لومړی څپرکی

# هغه حروف چې پر اسم داخلیږي

**۱. د جر حروف په لاندې ډول دي:**

**من، إلی، عن، علی، فی، باء، کاف، لام، واو د قسم، تاء د قسم، حتی، رُبّ، منذ، مذ، خلا، عدا، حاشا، رب.**

**هر يو حرف چې له پورتنيو حروفو څخه مخکې له اسم څخه واقع شي هغه مجرور ګرځوي او په کومو نښو (علامو) د جر چې مخکې ياد شوي مجرور ګرځي.**

**۲. د مشبه بالفعل حروف (إنّ او د هغه اخوات) په لاندې دول دي:**

**إنّ، أنَّ، کأن، لکنّ، لعلّ، ليت، لا.**

**دا حروف په اسميه جمله داخليږي چې مبتدأ منصوب او خبر لکه څنګه چې مخکې هم مرفوع وي په خپل حال مرفوع ګرځوي او د هغوی خبر ياديږي.**

**۳. د نداء حروف:**

**دا حروف له منادا څخه مخکې راوړل کيږي او هغه اسم چې له دوی څخه وروسته راځي که چيرې مضاف او يا شبيه له مضاف سره وي، منصوب ګرځي. همدا ډول که نکرهٔ غير مقصوره وي منصوبه ګرځي. او د رفع په خپله علامه مبنیٰ ګرځي که چيرې علم يا مقصوره نکره وي.**

**۴. د استثنأ حرف (لا):**

**په دې اړه د مستثنیٰ په بحث کې خبري وشوي. هغه اسم چې وروسته له (الاّ) څخه واقع شي منصوب ګرځي په هغه صورت کې چې استثنأ تام او کلام منفی وي، نصب او اتباع دی اعراب دی مستثنیٰ منه راځي. او که چيرې کلام منفی او مستثنیٰ منه ذکر شوی د هغه موجود عامل اعراب اخلي کوم چې مخکې له اداة څخه ذکر شوي دي.**

**۵. د ابتدأ لام:**

**هغه لام دی چې د کلام په لومړي سر کې راځي او کوم خاص اثر نه د وروستي اسم په اعراب نه لري لکه: لعمرک لا خلصنَّ عملی.**

# دوهم څپرکی

## هغه حروف چې پر فعل داخلیږي

**۱. د نصب حروف:**

**أن، لن، کی، اذن، د تعلیل لام، د جحو د لام، سببیة فأ او حتی.**

**دا حروف د مضارع فعل منصوب ګرځوي او کومه مضارع فعل چې وروسته له دي حروفو راځي هغه منصوب په فتحه وي یا مجذوم په حذف د نون که چیرې د مضارع فعل دا افعال خمسۀو له ډلي څخه وي او یا منصوب په حذف د نون که چیرې د افعال خمسۀو څخه وي.**

**۲. د جزم حروف:**

**لم ـــ لما ـــ لام دامر ـــ لام د نهی ـــ إن.**

**هغه مضارع فعل چې وروسته له دي حروفو راځي په سکون مجزوم ګرځي که چیرې معتل الاخر او د اسمأوخمسۀو له ډلي څخه نه وي. که چیرې د مضارع فعل د افعال خمسۀ له ډلي څخه وي د نون په حذف مجزوم او که معتل الاخر وي نو علت د حرف په حذف مجزوم ګرځي.**

**۳. ما او لا:**

**دا دواړه حروف د نفي لپاره دي "ما" ډیر ځله د ماضي په فعل داخلیږي او "لا" په مضارع فعل. دا دواړه حروف د مدخول فعل پر اعراب کو تأثیر نه لري.**

**۴. قد:**

**دا حرف که چیرې په ماضي فعل داخل شي تأکید افاده کوي او که چیرې پر مضارع داخل شي تقلیل (کله، کله) افاده کوي او د فعل پر اعرب کوم تأثیر نه لري.**

**۵. سین او سوف:**

**دا دواړه حروف مضارع فعل مستقبل ته اړوي سین د قریب مستقبل لپاره او سوف د بعید مستقبل لپاره افاده کوي او د فعل په اعراب کوم تأثیر نه لري.**

# دریم څپرکی

## هغه حروف چې هم اسم او هم پر فعل داخلیږي

**۱. د عطف حروف:**

**واو ــ فاء ــ او ــ ام ــ لکن ــ لا ــ بل ــ حتی.**

**دا حروف د دوو اسمونو یا دوو فعلونو تر مینځ واقع کیږي او هر هغه اسم یا فعل چې وروسته له دي حروفو څخه واقع شي د خپل ماقبل اسم یا فعل اعراب ځان ته غوره کوي.**

**۲. واو د حال:**

**هغه حروف دي چې حال واقع شوی جمله اسمیه وي اکه فعلیه له ذوالحال (فاعل وي که مفعول به) سره نښلوي.**

**که چیرې فعلیه جمله په مثبته مضارع شروع شوی وي دا واو د هغه رابط نښي ګرځیدای او هغه جمله چې وروسته لدي واو راځي د حال توب له حیثه په محل د نصب کې د نصب اعراب اخلي.**

**۴. د قسم لام:**

**دا لام د قسم پر ځواب داخلیږي که چیرې ځواب د قسم اسمیه جمله وي او که فعلیه جمله پدې شرط چې منفې به نه وي. (دا موضوع د قسم په بحث کې په تفصیل راځي).**

**عمومې کتني د بعضي حروفو په اړه:**

**د حروفو ډولونه او ځیني نور تقسیمات یې د موقعیت له حیثه په جمله کې مخکې ولوستل شو.**

**دلته په عام ډول بعضي حروف چې زیات له یوه غرضه او یا زیات له یوه ځای څخه د استعمال موارد لري د کتني لاندې نیسو.**

**همزه:**

په لاندې ځایونو کې کارول کیږي:

الف: د ندأ حرف: همزه قریبي ندأ ته کارول کیږي او مخکې د منادي له اسم څخه راوړل کیږي. لکه: أمحمد أقبل.

ب: د استفهام حرف: په یا په فعل داخلیږي او د هغوی په اعراب کومه اغیزه نه کوي. له لاندې شیانو څخه د همزی پواسطه پوښتنه تر سره کیږي:

- o له دوو شیانو څخه د یوه د تعین لپاره چې د دواړو تر منځ معادلت ذکر شوی وي لکه: أقطار رکتب أم سیارة؟
  أدرست التاریخ أم الجغرافیا.
- o د جملي له مضمون څخه که مثبته وي او که منفي. لکه:
  أقرأت القصة؟ أم تراخی؟

**باء:**

دا همیشه د جر حرف دی په ظاهره یا ضمیر اسم داخلیږي کله اصلي او کله زائده استعمالیږي.

د اصلي حرف په توګه د لاندې موخو لپاره کارول کیږي:

* ظرفیه مکانیه: تجتمع الاسرة بالمنزل.
* د ستعانة لپاره: قطعت الخبز بالسکین.
* د تعویض لپاره: لکه اشتریت الکتاب بسبعین افغانی.
* د التصاق لپاره: لکه مررت محمدٍ.
* د قسم لپاره: بالله لن یضیع حقنا.

ب: په لاندې ځایونو کې "جاره باء" زائد راځي:

* د لیس په خبر کې: لیس الفقر بعیب.
* د کفی په فاعل کې: کفی بالله نصیرا.
* دا فعل به په صیغه کې چې تعجب دی: أجمل بالسماء.

**تاء:**

تاء کله د ضمیر اسم او کله حرف راځي.

۱. د ضمیر تأ چې د فاعل په تأ هم یادیږي له ماضي فعل سره متصل کیږي او په دې ول په محل د رفع کې فاعل واقع کیږي (چې په دې اړه د مبنیٰ په بحث پوره تفصیل شوی). لکه: اناکتبتُ، أنت کتبتَ، أنتِ کتبت.

۲. هغه تأ چې حرف دی دوه ډوله استعمال لري:

الف: د قسم تاء: دا حرف چې یوائې د (الله) یا د جلاله له اسم سره استعمال لري لکه: تالله لا کافئن الناجح.

ب: تأنیث تاء: چې په دوه ډوله دي:

- ❖ هغه تاء چې له فعل ماضي سره یوځای کیږي او په مطوله ډول یا اوږده لیکل کیږي لکه: زینت قرأتْ ــ دا ډول تاء تل ساکنه وي.
- ❖ هغه متحرکه تاء چې د مضارع فعل په سر کې د مؤنث مفرد لپاره راوړل کیږي. لکه: فاطمه تقرأ ــ هند تسافر، او په همدې ډول په مضارع فعل کې د مخاطب مفرد لپاره هم راځي لکه: أنت تقرأ.
- ❖ د تأنیث تاء د اسم له وروستۍ برخي سره یوځای کیږي او په مدور شکل (ة) لیکل کیږي او د وقف په وخت کې هاء تلفظ کیږي.

**سین او سوف:**

سین پر مضاف فعل داخلیږي او د هغه د وقوع په نږدی والي (قریب و قوع) باندې دلالت کوي. لکه: سأزورک غداً.

اوسوف داسې حرف دی چې مبنیٰ پر فتحه دی او په مضارع فعل داخلیږي او د فعل د وقوع لری والی (بُعد) افاده کوي. لکه: سوف تعلن، بعد شهرین.

**فاء:**

په لاندې ځایونو کې کارول کیږي.

الف: د عطف حرف چې ترتيب او تعقيب افاده کوي کله په اسم او کله پر فعل داخليږي. لکه: تولى الخلافة ابوبکر فعمر ــ دخل المدرس فوقف الله اميذ.
ب: د نصب حرف (د سببية فاء) چې په مضارع فعل داخليږي او هغه منصوب ګرځوي او د ماقبل په سبب توب د مابعد لپاره، دلالت کوي او لازمي دى چې مخکنى جملهٔ (ماقبل يې) طلب يا نفى وي. لکه:
کونوا يدا واحدة فتنفذوا ــ ما تصرت فى السعى فاندم.
ج: د ابتدأ حرف د شرط په ځوابيه جمله کې: چې په ځينو مواردو کې يې موجوديت د شرط په ځواب کې واجب دى. لکه:
من جدّ فالنجاح حليفه ــ من افشى السرفليس بأمين.

**کاف:**

کله حرف او کله ضمير وي.
۱. د ضمير کاف د خطاب په کاف هم ياديږي له اسم او فعل سره متصل کيږي.
کله چې له فعل سره متصل شي په محل د نصب کې مفعول به وي. لکه:
قابلک زيد ــ يقابلک بکر.
او کله چې له اسم سره متصل وي په محل د جر کې مضاف اليه وي. لکه:
هذا کتابک.
۲. حرفى کاف:
الف: د جر حرف دى او تشبيه افاده کوي. لکه: الممرضه کالملألکة.
ب: زائد د خطاب حرف:
- د اشارى په اسمونو کې لکه: ذلک، تلک، اولئک.
- د نصب په منفصلو ضمائرو کې. لکه: إياک.
- په ځيني اسمأ افعالو کې لکه: دونک، رويدک.

**لام:**

لام په څلور ډوله استعمالیږي:

الف: د حرف جر په توګه:

ـــ یا مکسور وي کله چې لمک یا تعلیل افاده کړئ. لکه:

(للّه ما فی اسموات و مافی الارض. یذهب التلمیذ الی المدرسة للتعلم)

په اول مثال کې د ملک او په دوهم مثال کې د تعلیل لپاره دی.

ـــ یا مفتوح وي چې دی استغاثی (کمک غوښتل) یا د تعجب لپاره کارول کیږي لکه هغه د نصب حرف چې د مضارع فعل داخلیږي او هغه منصوب ګرځوي، او دوه حالته لري:

۱. د تعلیل لام: چې په دې حالت کې لام مکسور او د (کی) په معنی وي. لکه: إعملوا لتعیشوا سعداء.

۲. د جحود لام (د انکار لام) چې دا ډول لام مکسور او په (ماکان) یا (لم یکن) باندې مسبوق وي. لکه: لم یکن الله لیغفرَلهم.

ج: د جزم حرف (د امر لام): پدې حال کې هم مکسور دی او په مضارع فعل داخلیږي چې هغه مجزوم او د امر په معنی اړوي لکه: لینفق القادرون من غناهم.

د: لام د تأکید لپاره دی او تل مفتوح وي او تأکید افاده کوي او کوم تأثیر د اسم یا فعل چې دی پری داخلیږي، نه لري او د استعمال ځایونه یې په لاندې ډول دي:

- د بتدأ لام چې په مبتدأ داخلیږي. لکه:
  لزید افضل من عمرو ـــ لعمرک إن النصر لأ ولیأ الله.
- هغه لام چې د إنَّ په خبر داخلیږي لکه: (إنَّ ربک لبالمرصاد). او که چیرې د إنّ إسم مؤخروي (لام) پر اسم داخلیږي. لکه: إن فی ذلک لعبرة لاولی الالباب. باید په دې پوه شو چې د إنَّ د خبر لم پر نورو مشبه بالفعل حروفو نه داخلیږي.
- هغه لام چې د "لو" یا "لولا" په ځواب کې واقع کیږي لکه:

لولا الطبيب لساءت حالة المريض. (ددي موضوع شرع په پنځم باب کې ذکر شي).

- د قسم د ځواب لام. لکه: والله لأعاقبنَّ المقصر.

**نون:**

کله ضمير او کله حرف واقع کيږي.

۱. نون د ضمير چې په نون نسوه ياديږي د ماضي، مضارع يا د امر فعل ته مسند وي دا نون مفتوح او ماقبل يې ساکن په محل د رفع کې، فاعل دی (نومورو افعالو) ګرځي. لکه:الطالباط ذهبن، الفتيات يذهبن ــ إذهبنّ اليها السيدات د نسوة نون په لومړي مثال کې د ماضي د فعل، فاعل په دوهم کې د مضارع د فعل فاعل او په دريم مثال کې د امر د فعل فاعل واقع شوی چې په دريواړو ځايونو کې د رفع په محل کې قرار لري.

۲. حرفي نون په څلور ډوله استعماليږي:

الف: د تأکيد نون: دا نون هم محفف او هم مشدّد استعمال لري په مضارع فعل او امر کې په کومو شرطونو چې د مضارع فعل د بنأ په فعل کې شرح شول داخليږي.

لکه: أطيعنْ والديک (خفيفه ساکن نون چې د امر په فعل داخل شوی دی).

ولا تحسبنّ الله غافلاً د مشددّه (ثقيله) نون چې په مضارع فعل داخل شوی دی.

ب: د وقايې نو: لکه سمعنی ــ يسمعنی ــ إسمعنی ــ إننی ــ لعلنی.

ج: د تأنيث نون: هغه مشدد او مفتوح نون دی چې له ضمائرو څخه متصل کيږي تر څو پر جمع مؤنثه باندې دلالت کوي. لکه:

کتابکنَّ، کتابهنَّ، شکرکنَّ، يشکرکنَّ، يشکرهنَّ او أشکرهنَّ.

د: زائد نون:

دا هغه نون دی چې په مضارع فعل وروسته له اسناده د مضارع الف د تثنيي واو د جماعت او ياء د مخاطبی ته داخليږي او که چيرې مخکي له مضارع فعل ځخه د نصب يا د جزم ادواة ذکر شي دا نون حذفيږي لکه: يکسبان، تکسبان، يکسبون، تکسبون، تکسبن، لن يکسبا، لن تکسبا، لن يکسبوا، لن تکسبوا، لن تکسبی، لم يکسبا، لم تکسبا، لم يکسبوا، لم تکسبوا، لم تکسبی.

ـــ دا نون له مثنیٰ اسم او جمع مذکري سالمي سره هم ملحق کيږي خو له مثنیٰ کې مکسور او په جمع کې مفتوح وي لکه: المهندسانِ ـــ المهندسونَ.

ـــ او که چيرې مثنیٰ اسم يا جمع مضاف واقع شي، نون حذفيږي لکه:

جأ مهندساالعمارة ـــ و حضر مهندسوا الطرق والکبارای.

واو:

الف: واو کله ضمير يا حرف وي.

۱. د ضمير واو چې دی جماعة په واو يادېږي له ماضي، مضارع او امر له فعل سره متصل کيږي او په محل د رفع کې فاعل د نومورړي فعل واقع کيږي. لکه: شکروا ـــ شِکرون ـــ اشکروا (واو په هر يوه فعل کې فاعل دی).

۲. حرفي واو په ځلور ډوله کارول کيږي:

الف: د عطف حرف: دا عاطف په مطلق جمع دلالت کوي او مخکې له اسم يا فعل ځخه راځي. لکه:حضر احمد وسعيد و ذهبا الی المدرسة.

ب: د جر حرف: په دوه ډوله دی:

۱. د قسم واو: له مقسم به ځخه مخکې راځي. (الله ـــ حياتک ـــ حقک) لکه: وحقک لأکرمنک.

۲. د ربَّ واو وروسته له حذف د ربَّ: چې په نکره اسم داخليږي. لکه: وليل کموج الجرأرخی سددو له.

ج: واو معية: د مصاحبة افاده کوي او هغه اسم چې وروسته له دې واو واقع کيږي د مفعول به په نامه ياديږي او منصوب دی. لکه: إستيقظت و طلوعَ الفجر.

د: د حال واو: لکه څرنګه چې مخکې يادونه وشوه دا واو او هغه جمله چې حال واقع کيږي له ذوالحال سره تړي او حاليه جمله په محل د نصب کې دی. لکه: زرته وهو يستعدللسفر.

**ياء:**

کله ضمير او کله حرف وي.

۱. د ضمير يأ په دوه ډوله دی:

الف: د متکلم يأ: دا يأ له ماضي، مضارع او امر له فعل سره متصل کيږي چې مفعول به دی د نصب په محل کې واقع کيږي، او تل ددې يأ او د عامل فعل ترمينځ يې نون د وقايې فاصل واقع کيږي. لکه:

شکرنی ـــ يشکرنی ـــ اشکرنی (يا په محل د نصب کې مفعول به دی).

- يأ له اسم سره متصل کيږي او په محل د جر کې مضاف اليه واقع کيږي. لکه: کتابی ـــ قلمی ((ياء) په محل د جر کې مضاف اليه).
- له حروفو مشبه بالفعل سره يوځای کيږي او په محل د نصب کې دی. لکه: إنی مقتنع برأيک (يأ په محل د نصب کې د إنَّ اسم).
- کله يأ د يو له حروفو جارؤ سره متصل کيږي. لکه: مرَّبی.

**ب: مخاطبه يأ:**

دا ډول يأ د مضارع، او امر له فعل سره متصل کيږي او د مفردي مخاطبي ضمير دی په محل د رفع کې فاعل دی. لکه: تقومين ـــ قومی ("ی" مخاطبه په محل د رفع کې فاعل).

**۲. حرفي يأ: دا يأ په څلور ډوله دی.**

الف: د مضارعة يأ چې مضاف فعل په سرکې چې غائب مفرد، مثنیٰ، جمع مذکر او نون د نسوی ته مسند وي راځي. لکه: يکتب، يکتبان، يکتبون، يکتبن.

ب: یأ د تثنیي: چې د جمع مذکر سالم د نصب او جر علامه ده او په خپله ساکن او ماقبل یې مکسور وي. لکه: رأیت المهندسین مِررت بالمهندسین.
د: د نسب یاء (نسبتی یاء) دا یاء مشّده ده او ماقبل یې مکسور او د یوه شي بل شي ته د نسبت لپاره دلالت کوي. لکه: مصریّ ــ فغانیّ ــ علمیّ ــ جا معی.
لا:
لا پر اسم اوفعل په دوارو داخلیږي:
۱. "لا" په لاندې ځایونو کې پر فعل داخلیږي.
الف: د نفی حرف: دا ډول "لا" معمولاً په مضارع فعل داخلیږي او نفی افاده کوي او د فعل په اعراب کې کوم خاص اثر نه لري. لکه:
العنب لا ینفج فی الشتأ ــ الکذب لایفید.
ب: د جزم حرف: (ناهیه لا) پر مضارع فعل داخلیږي او نهی افاده کوي او مدخول بها فعل مجزوم ګرځوي. لکه: لا تقربوا الصلوة وانتم سکاری.
۲. هغه "لا" چې پر اسم داخلیږي په لاندی ډول دي:
الف: د عطف حرف: له معطوف څخه د حکم نفی افاده کوي لکه:
حصدنا ال القمح لا الشعیر.
ب: د نفی حرف: چې د إنّ له اخواتو څخه دی او نامه د (لا النافیة للجنس) یادیږي چې معمول یې اسمیه جمله دی او لکه (إنّ) عمل کوي خو په دي شرط چې له اسم سره متصل وي او خبر د خپل اسم له جنس څخه نفی کړي لکه:
لا إله إلاالله ــ لا کتاب یخلومن فائدة.
ج: د نفی حرف او لکه لیس عمل کوي: دا هم پر مبتدأ او خبر داخلیږي او لکه چې مبتدأ او خبر نکره وي، بل دا چې نفی د استثنأ (الا) په واسطه نه وي راغلی لکه:
لا شارعُ مز رحمًا.
د: زائد حرف نفی: په دوؤ حالاتو کې (لا) زائده وي:
یو دا چې په معرفه اسم داخله شوي وي لکه: لا القوم قومی ــ ولا الاعوان اُعوانی.

بل دا چې په (لا) د جر حرف داخل شوی وي لکه: يسير الجندی بلاخوف.

ما:

ما په دوه ډوله دی اسمي او حرفي:

۱. هغه (ما) چې اسم دی څلور ډوله لري:

الف: موصول اسم: چې په غير ذوالعقولوکې استعماليږي چې د مبنیٰ اسم په برخه کې ولوستل شو. لکه: قرأت ما کتبت من قصص.

ب: د استفهام اسم: چې له غير ذوالعقولو د هغې پواسطه پوښتل کيږي. لکه: ما اجب القصص اليک؟

ج: د شرط اسم: چې دوه فعله (د شرط او جزا فعلونه) مجزوم ګرځوي. لکه: ماتد خره يفدک فی المستقبل.

د: د نکره اسم په معنی دی (شيئُ عظيم) (ماالتعجبية): په دي حالت کې په محل د رفع کي مبتدأ چې شرحه يې په پنځم باب کې راځي لکه: ما أجمل الزهور.

۲. حرفي (ما) د لاندې موخو لپاره کارول کيږي:

الف: د نفی حرف چې په عام ډول په ماضي فعل داخليږي او په تيره زمانه کې نفی افاده کوي او په مضارع فعل ه داخليږي چې د فعل د وقوع، نفی په حال او استقبال يې کوي. لکه: ما خرج محمد ــ إن تجهد فما إتجهد فما إمتنع عن مکا فأتک.

ب: د نفی حرف: چې په مبدأ او خبر داخليږي پدې صورت کې که چيرې مبتدأ له خبر څخه مخکې ذکر شوي وه او د (الا) پواسطه نفی نه وه نقض شوی لکه ليس عمل کوي. لکه: ماالحصون منيعة.

او که مبتدأ وروسته له خبر څخه راغلی وه او يا هم خبر وروسته له (الا) راغلي وي او نفی نقض شوی وه په دی صورت کې کو اثر د مبتدأ او خبر په اعراب کې نه راولي لکه: ماأنت إلا شاعر.

ج: زائده کافه (له اعرابي څخه منع کونکی):

کله چې (ما) له إنّ یا د هغه په ډول نورو حروفو سره متصل ذکر شي له عمل څخه یې منع کوي مبتدأ او خبر په خپل حالت مرفوع پاتې کیږي. لکه: إنماالعدل اساس الحکم.
او که چیرې (کافه ما) له ــ قَلَّ ــ کَثُرَ او طَالَ په افعالو سره متصل شي نو دا افعال د فاعل له غوښتلو څخه منع کوي او له ده څخه وروسته فعلیه جمله راځي. لکه:
قلّما یتمکن المهمل من الوصول الی غایته ــ کثر مایطالب المهاجرون العودة إلی بلادهم ــ أطالما نعیش محتاجین الی مساعدات الاجانب.
او کله چې (کافه ما) له "کاف" او "رب" د جر له حروفو سره متصل شي د هر یوه عمل باطلوي. لکه: ربّما صدیق انفع من شقیق.
د: زائده او غیر کافه (نه منع کونکی له عمل څخه):
دا ډول (ما) خپل ماقبل له اعرابي عمل څخه په ما بعد کې نه منع کوي او دا په هغه صورت کې چې (زائده ما) له من، عن او بأ سره متصل شي لکه:
عما قلیل لیصبحنَّ نادمین.
ــ همدا ډول کله چې له بعض ظروفو سره یوځای شي لکه (قبل، بعد، دون) د عمل مانع نه ګرځي. لکه: د جوته الحضور دونما تأخیر. دون: مضاف. (ما) زائده.
تأ خیر: مضاف الیه او مجرور په کسره.
ــ أم ــ أو ــ إما: دا د عطف حروف دي او یو له بل سره په معنی کې قریب دي.
او د دوي فرق یو له بل سره په استعمال پیژندل کیږي:
ــ (أم) وروسته له کلمي د "سوأ" او یا وروسته له همزی د استفهام څخه استعمالیږي. لکه: سواء عليَّ أحضرت أم تغیبت. أبرتقالا اکلت أم عنبا.
ــ (أو) د تخییر، تقسیم یا شک لپاره استعمالیږي. لکه: خذ برتقالا أو عنبا (تخییر).
الکلمة اسم، فعل او حرف. (تقسیم) نقل الخبر علی او محمد (شک).
ــ (إما) همدا ډول تخییر، تقسیم او شک افاده کوي. لکه: الکلمة إما إسم و اما فعل او إما حرف.

أی: کله اسم او کله حرف وي استعمال يې د حرف په توګه نسبت استعمال يې د اسم په توګه زيات دی.

اسمی (أیٌ): مشدد وي او معرب، او د موقعيت له لحاظه په جمله کې، مرفوع، منصوب او يا مجرور ګرځي. او جائز دی چې له مؤنثي مضاف اليه سره تا واخلي خو ضروري خبره نه ده.

ــ اسمی (إیَّ) په پنځه ډوله دی:

د موصول اسم، د شرط جازم اسم، د استفهام اسم، مبهم اسم او د نکری صفت.

چې دا موضوع د اسم موصول په درس کې تير شو.

الف: موصول اسم: په دې صورت کې (أيٌّ) د الّذی، من، یا، ما په معنی دی او صلي ته احتياج لري. لکه: يعجبنی أیُّ ادی عمله يعنی يعجبنی من ادی عمله.

ب: جازم اسم شرط: دا موضوع د فعل مضارع د جزم په بحث کې تيره شوه. لکه: ای امرىء يکرمنی أکرمه.

ج: د استفهام اسم: چې د استفهام په بحث کې به راشي. لکه:

أیّ رجل قابلت؟ فی أی بلد ولد رسول الله صلى الله عليه وسلم.

د: مبهم اسم منادي مبنیٰ په ضمه او دا له هغه دووؤ حالاتو څخه دی چې أیَّ مبنیٰ وي. لکه: ايهاالمواطنون ــ ايتهاالمواطنات.

هــ: د نکری اسم صفت: لکه: مررت برجل. أی رجل.

او يا: مررت برجل ايَّما رجل.

حرفي (أیّ) مبنیٰ پر سکون دی او په دريو وجهو استعماليږي:

الف: د ندأ حرف: چې د ندأ په بحث کې وڅيړل شو.

لکه: أی محمد أقبل.

ب: د تفسير حرف: لکه: يقصد بالاجر کل ما يتقاضاه العامل لقأ عمله. ای المرتب والعلاوات والبدلات و المکافئات.

ج: إى (د همزى په کسره) هغه حرف چې له قسم څخه مخکې راوړل کيږي: إى والله.

**نعم، بلیٰ، أجل:**

دا مبنیٰ حروف دي او د هغه استفهام په ځواب کې راوړل کيږي چې په (هل) يا همزه باندې شوي وي.

هل: په هل باندې پوښتنه تل د مثبتي جملي له مضمون څخه کيږي که چيرې ځواب مثبت وي (نعم) او که منفي وي (لا) ويل کيږي. لکه: هل فهمت الدرس؟ چې په مثبت ځواب کې نعم او په منفي ځواب کې لا باندې ښکاره کيږي. او داسې ويل کيږي: نعم فهمت الدرس ــ او په نفی کې: لا لم افهم الدرس او يا ما فهمت الدرس کيږي.

همزه: په همزه باندې پوښتنه کله د مثبتې جملي له مضمون څخه او کله د منفي جملي له مضمون څخه  کيږي، که مضمون د جملي مثبت وي په (نعم) او که منفي وي په (لا) باندې ښکاره کيږي. لکه:

أفهمت الدرس؟ که ځواب مثبت وي (نعم) او که منفي وي ځواب: لا لم أفهمه دی.

ــ او که چيرې سوال يا پوښتنه په همزه د منفي جملي له مضون څخه وي مثبت ځواب "بلیٰ" او که منفي وي "نعم" دی. لکه: الم قضهم الدرس؟ مثبت ځواب "بلیٰ" فهمة دی او که منفي اوسي ځواب نعم لم افهم الدرس کيږي.

(أجل) لکه نعم د استعمال موارد لري.

لكنْ، لكنَّ: لكنْ د (نون په سکون) د عطف حرف دی او استدراک (رفع دی هغه توهم چې له سابق کلام څخه مينځته راغلی وي) افاده کوي. ورروسته له نفی يا نهی څخه عطف د لكنْ پواسطه کيږي. لکه: ما حضر عليٌّ لكن محمود ــ (له نفی څخه ورروسته استدراک).

لاتشکر عمرا لکن بکرا (له نهی څخه ورروسته استدراک).

ــ لکنَّ (په تشدید او فتحه) د مشبه بالفعل او إنّ له اخواتو څخه دي. کولای شو هغه ته د نصب او استدراک حرف ووایو.
دا حرف په مبتدأ او خبر داخلیږي چې مبتدأ منصوب او خبر مرفوع ګرځوي لومړي ته اسم او دوهم ته خبر د لکنّ ویل کیږي. لکه: هذالکتاب صغیر لکنّ نفعه کثیر.
کله: لکن مخفف ګرځي او دنون په سکون تلفظ کیږي او نصب عمل کې لغو کیږي. لکه: هذالکتاب صغیر و لکن نفعه کبیر.

**یادونه:**

أیا د (مع) کلمه اسم دی که حرف؟
لیدل کیږي چې د (مع) کلمه هیڅ ډول د حروفو په ډله کې ندی راغلی ولی دا پوښتنه چې (مع) اسم دی او که حرف د نحو د پوهانو ترمینځ په دې اړه اختلاف وجود لري. راحج نظر دا دی چې (مع) اسم دی نه حرف او دلیل یې دا دی چې کله نا کله تنوین چې د اسم له علامو څخه دی په (مع) داخلیږي. لکه: جأ وامعاً. دا روښانه خبره ده چې حروف هیڅ تنوین نه قبلوي ځکه چې ټول حروف مبنیٰ دي.
لدې کبله ویلای شو چې (مع) یا د مکان او یا د زمان د (مصاحبی) اسم دی.
دا اسم معرب او مفتوح العین د ظرفیت له وجه څخه دی.
او کوم اسم چې وروسته له (مع) څخه واقع کیږي مضاف الیه او مجرور دی. لکه: جلس أحمد مع محمودٍ.
(مع) منصوب په فتحه ظرف مکان، محمودٍ مضاف الیه مجرور په کسره او لکه: جأ محمد مع سعید. مع: د زمان ظرف سعید مضاف الیه مجرور په کسره.

## څلورم باب

## جمله د اعراب له حيثه

په عربي ژبه کې جمله په دوه ډوله ده: فعليه جمله او اسمية جمله.

**۱. فعليه جمله:** هغه جمله ده چې پر فعل شروع کيږي له فعل او فاعل يا له فعل او نائب فاعل څخه جوړه شوى (مرکبه) وي.

فاعل او نائب فاعل:

الف: فاعل کله ظاهر اسم وي (معرب يا مبنىٰ) لکه:

حضر الرجل، حضر: د ماضي معلوم فعل مبنىٰ پر فتحه. الرجل: فاعل او مرفوع په ضمه.

نجح هذالطالب. نجح: د ماضي معلوم فعل مبنىٰ پر فتحه. هذا: د اشارې اسم مبنىٰ په محل د رفع کې فاعل.

ب: فاعل کله بارز ضمير وي. لکه: حضر د ماضي معلوم فعل مبنىٰ پر سکون په محل د رفع کې.

ج: مستتر ضمير: لکه: الرجل حضر. الرجل: مبتدأ مرفوع په ضمه او حضر د ماضي فعل مبنىٰ پر فتحه او فاعل يې مستتر ضمير چې تقدير يې (هو) دى جمله فعليه چې له فعل، فاعل څخه مرکبه دى په محل د رفع کې خبر د مبتدأ.

د: مسول مصدر له أنْ او فعل څخه يا له أنّ او د هغه له اسم او خبر څخه. لکه: يسرّنى أن تنجح. مسول مصدر له (أن تنجح) څخه د يَسُرُّنى فاعل.

**۲. اسميه جمله:**

هغه جمله ده چې له مبتدا او خبر څخه مرکبه وي. لکه: الرجل حاضر نحن مسلمون.

## هغه جملي چې د اعراب په محل کې دي

جمله که اسمیه وي او که فعلیه کله ناکله د مفرد اسم په ځای کې واقع کیږي نو په اعرب کې د مفرد اسم ځای (محل) نیسي. لکه: الرجل حضر. دی حضر جمله چې له فعل او فاعل څخه جوړه ده خبر واقع شوی او دا ممکنه ده چې اووایې: (الرجل حاضر) په دې ترتیب حضر د حاضر په موقعیت کې چې مفرد دی واقع شوی نو ویلای شو چې: (حضر) فعل او فاعل فعلیه جمله په محل د رفع کې د خبر په توګه دی. پدې ډول ویلایشو جمله (که اسمیه وي یا فعلیه) په محل د اعراب کې په نهو ځایونو کې راتلای شي.

۱. کله چې جمله خبر د مبتدأ واقع شي. لکه: الأشجار اغصانها مورقة.

الشجار: لومړی مبتدأ مرفوع په ضمه.

اغصانها: دوهمه مبتدأ مرفوع په ضمه "ها" ضمیر مبنیٰ پر سکون په محل د جر کې مضاف الیه.

مورقة: د دوهمې مبتدأ خبر چې (اغصانها) دی.

ورستیِ مبتدأ له خپل خبر سره یوځای اسمیه جمله په محل د رفع کې خبر د لومړی مبتدأ لپاره. او لکه: اسمک یسبح. اسمک: مبتدأ او مرفوع په ضمه.

یسبح: د مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل یې مستتر ضمیر چې تقدیر یې (هو) دی. جمله چې په فعل او فاعل څخه جوړه ده په محل د رفع کې خبر د مبتدأ چې اسمک دی.

**یادونه:**

کله چې جمله خبر واقع کیږي واجب دی چې رابط وجود ولري چې هغه له مبتدأ سر ونښلوي او ډېر ځله دا رابدط ضمیر وي.

۲. کله چې جمله خبر د کان یا خبر دی هغه اخواتو واقع شي.

لکه: کان الرجل ثبابه نظیفة.

ثابه نظیفة: اسمیه جمله په محل دی نصب کې خبر د کان دی. او لکه: امسیٰ التلمیذ یدرس. یدرس: فعلیه جمله په محل د نصب کې خبر دی أمسیٰ.

۳. کله چې جمله خبر د حروفو مشبه بالفعل واقع شي. لکه: إنّ الرجل ثابه نظیفة. اسمیه جمله په محل د رفع کې خبر دی (إنَّ).

۴. کله چې جمله مفعول به واقع شي. لکه: قال الطالب أنا مجدّ. انا مجد مبتدأ او خبر اسمیه جمله په محل د نصب کې مفعول به د قال.

۵. کله چې جمله حال واقع شي. لکه: ننتصر علی العدو ونحن یدواحد.

واو: حالیه.

نحن: منفصل ضمیر مبنیٰ پر ضمه په محل د رفع کې مبتدأ.

ید: خبر د نحن مرفوع په ضمه. واحدة: د ید صفت (نعت) مرفوع په ضمه، نحن او د هغه خبر اسمیه جمله په محل د نصب کې حال.

او لکه: سمعت الطیور تغرَّدُ. تغرَّدُ: مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل یې مستتر ضمي چې تقدیر یې هی کیږي او فعلیه جمله په محل د نصب کې حال.

**یادونه:**

جمله حال نشي راتلای تر څو چې ذوی الحال معرفه نه وي. او د هغې د حال واقع کیدلو د صحت شرط دا دی چې جمله به یوه رابط مشتمله وي چې دا رابط به د هغه له ذوالحال سره تړی (مرتبط).

کیدایشي دا رابط یواځې (واو) وي یا هغه ضمیر چې ذوی الحال ته راجع کیږي او یا هم واو او ضمیر دواړه رابط وي.

٦. کله چې جمله نعت واقع شي. لکه:

قضینا الصیف فی قریة هوائها نقی. فی: د جر حرف، قریة: مجرور په کسره، هوائها: هوأ مبتدأ مرفوع په ضمه مضاف، (ها) ضمیر مبنیٰ پر سکون په محل د جر کې مضاف الیه. نقی: خبر د هواء (مبتدأ).

مبتدأ او خبر اسميه جمله په محل د جر کې نعت يا صفت د قرية. او لکه: سمعت طيوراً تُغُرّد. طيوراً: مفعول به منصوب په فتحه.
تغرّد: د مضارع فعل مرفوع په ضمه ا فاعل يې مستتر ضمير چې تقدير يې هی کيږي.
جمله فعليه په محل د نصب کې نعت دی طيور.

**يادونه:**

جمله نعت نه واقع کيږي تر څو چې د هغه منعوت نکره نه وي او يا په بل عبارت جمله يوائې د نکرې صفت واقع کيږي. نو ويلايشو کله چې جمله وروسته له نکره اسم څخه واقع شي د اسم صفت او که چيرې وروسته له معرفه اسم څخه واقع شي د هغه اسم حال وي.

کله چې وايو: (سمعت الطيور تغرّدُ) د تغرد جمله په محل د نصب کې حال له طيور څخه دی. او که ووايو چې:

سمعت طيور اتغرَّد. د تغرَّدَ جمله په محل د نصب کې مفعول به کيږي.

بل مثال: کله چې ووايو: جاً زيد يسوق سيارته.

په دې مثال کې: يسوق فع او مستتر ضمير يې فاعل، جمله فعليه په محل د نصب کې حال له فاعل څخه چې زيدُ دی.

او که چيرې ووايو: جاء رجل يسوق سيارته.

يسوق سيارته جمله چې له فعل او فاعل څخه جوړه شوی نعت (صفت) د رجل په محل د رفع کې.

۷. کله چې جمله د جازم شرط ځواب وي او له فأ سره مقترله وي:

لکه: من فالنجاح حليفه. مبتدأ او خبر اسميه جمله په محل د جزم کې ځواب د شرط. (ددې موضوع شرحه به وروسته راشي).

۸. کله چې جمله مضاف اليه واقع شي:

جمله په درى حالاتو کې مضاف اليه واقع کيږي.

وروسته له "حيث" وروسته له "إذ" او ورسته له "إذا" لكه: ذهبت إلى حيث تقيم.
تقيم فعل او فاعل جمله فعليه په محل د جر كې مضاف اليه د حيث.
۹. كله چې جمله دداسې جملې تابع وګرځي چې هغه جمله په محل د اعراب كې واقع شوى وي. لكه: هذا الطالب مجهوده كبير واماله واسعة.
د (آماله واسعة) جمله، پر جمله د (مجهوده كبير) باندې عطف دى په دى علت جمله دى (اماله ..) د تابعيت له وجهى هم په محل د رفع كې دى.

# دوهم څپرکی

هغه جملې چې دي اعراب په محل کې نه راځي

هر هغه جملې چې دی مفرد اسم پر ځای قرار ونلري د اعراب په محل کې نه وي. دا نوع جملې په لاندې ډول دي.

۱. هغه جمله چې په اول دې کلام واقع کیږي او هغه جمله چې له ما قبل څخه جلا شوي وي لکه:

ذهبت الی المنزل: دا جمله د کلام په سر کې واقع شوي او په محل دې اعراب کې ندی. لاتکذب انالکذب مکروه. دا دواړه جملې یو له بل څخه منقطع دي.

۲. هغه جمله چې د موصول اصله وي، لکه:

جاء الذي کتب: الذي د موصول اسم مبني په محل دې د رفع کې فاعل. کتب: ماضي فعل مبني پر فتحه او فاعل یې مستتر ضمیر دا فعلیه جمله صله د موصول د ( الذی ) لپاره او محل دې اعراب کې ندی.

۳. هغه جمله چې دی غیر جازم شرط جواب واقع شوی وي:

لکه: لولا الهواء ماعاش کأین حي: ماعاش کأین حي جمله د ی غیر جازم شرط جواب او په محل دې اعراب کې نده واقع شوی.

۴. هغه جمله چې دې شرط جازم جواب وي خو له فاء سره مقتر نه وي: لکه

کیفما تعامل الناس یعاملوک: چې جمله د شرط جازم جواب دی او له فاء سره مقتر نه نوي. او په محل دې اعراب کې نه دی.

معترضه جمله: لکه ـــ کان ـــ رحمه الله ـــ قدوة حسنة.

۵. هغه جمله چې تابع دې هغه جملې وي چې په محل دې اعراب کې نه وي.

لکه: ذهبت الی المنزل و تناولت الطعام. دا دواړه جملې اعرابي محل نلري.

مفسره جمله:

**لکه: نظرت إلیه شزرا ای احتقرته: دې احتقرته جمله چې له فعل، فاعل، او مفعول څخه جوړه شوې د شزرا تفسیر واقع شوې نو دې اعراب په محل کې ندی واقع شوی.**

# پنځم باب

## د نحوي طريقې

په عربي ژبه کې د ځينو مطالبو بيان په مختلفو اشکالو او خاصو طريقو سره راغلی چې دا طريقې په لاندې ډول ياديږي. د شرط په طريقه، د قسم په طريقه، د مدح او ذم په طريقه، د تعجب اسلوب يا طريقه د اغراء او تحذير په طريقه، د اختصاص په طريقه، د استغاثي په طريقه د استفهام په طريقه.

په لنډه توګه دا طريقې ( اساليب ) او د هغوی اعراب په لاندې ډول په ترتيب يادول کيږي.

١. د شرط طريقه (اسلوب):

په دې طريقه کې دی شرط اداة دوه جملې داسې يو له بل سره نښلوي چې لومړی جمله د دوهمې جملې لپاره شرط ګرځي نو لدې کبله لومړی جملې ته شرط او دوهمې جملې ته د شرط جواب ويل کيږي.

٢. د شرط ادوات:

د شرط ادوات په دوه ډوله دی:

الف: هغه ادوات چې هم د شرط فعل اوهم د جزا فعل که چيرې مضارع فعل وي مجزوم ګرځوي. دا ادوات په لاندې ډول دي.

ان ــــ من ــــ ما ــــ مهما ــــ متی ــــ ايان ــــ اين ــــ اننما ــــ انی ــــ حيثما ــــ کيفما ــــ ای. چې د فعل مضارع دی جزم په بحث کې د دوی شرحه تيره شوه.

ب: هغه ادوات چې مجزوم نګرځوي عبارت دی له: لو ــــ لولا ــــ لوما ــــ اما ( څلور اداة حروف دي )

اذا ــــ لما ــــ کلما ( دا دری اداته د ظرف اسم دی )

لو: ( حرف امتناع لا متناع ) تعريف كيږي. يعنې داسې حرف دی چې په ممتنع والي دې جواب دې شرط دلالت کوي دې د شرط د امتناع لامله. اودا اداة ډېر ځله په ماضي فعل داخليږي او که چيرې د «لو» جواب مثبته ماضي وي، نو جواب له لام سره مقترن کيږي اوکه چيرې منفي ماضي وي له لام څخه به خالي وي. لکه:
لوعولج المريض لشفي چې جواب له لام سره مقترن شوی ځکه مثبته ماضي دی.
لوتأني العامل ما ندم: جواب له لام سره مقترن نه دی ځکه چې منفي ماضي دی.

**لولا او لوما:**

دا دواړه حروف په نامه دې ( حرف امتناع او جود ) باندې ياديږي ځکه چې په امتناع د جواب دلالت کوي بنا پر وجود د شرط.

وروسته له لولا او لوما څخه تل مرفوع اسم چې مبتدأ وي او خبر يې واجب الحذف دی قرار لري.

د دې دواړو ځواب هم که چيرې مثبته ماضي وي لام سره مقترن ګرځي او که منفي وي نو له لام څخه مجرده ذکر کيږي. لکه: لو لا الطيب لساءت حالة المريض ـــ لولا الطيب ماشفی المريض.

لولا: حرف د امتناع په سبب دې وجود  الطيب مبتداء مرفوع په ضمه خبر محذوف په حذف وجوبي سره چې تقدير يې: لولو الطيب موجود کيږي. مبتداء سره له محذوف خبر د شرط جمله.

اما: د تفصيل حرف دی د شرط د اداتو او د شرط د فعل قائم مقام دی او راوړل دي فاء د هغه په جواب کې لازمي ده. لکه: إنی أهنئُ جميع الناجحين، اما الأل فسأکافئه.

إذا: د مستقبل زمان ظرف دی وروسته له «اذا» څخه يواځې فعل راځي او فعل کله مذکور ا و کله مقدر وي او کومه جمله چې له «اذا» څخه وروسته واقع کيږي په محل دې جر کې مضاف اليه وي. لکه: إذا لطيب نصح لک فاعمل بنصحه ( فعل مقدر دی ).

لما او کُلما: دا دواړه د ماضي ظرف زمان اداة دي وروسته لدې څخه یواځي د ماضي فعل راځي. لکه: لما ذهبت إلیه وجدته مریضاً. ( کلما جاءکم رسول بما لا تهوا انفسکم استکبرتم )

۳. د شرط د جواب اقتران له فاء سره:

اصل دا دی چې دې شرط جواب له فا سره غیر مقترن وي خو په ځینو حالاتو کې د فاء اقتران واجب ګرځي که چیرې دې شرط اداة جازم وي او که غیر جازم چې دا صورتونه په لاندې ډول دي.

الف: اسمیه جمله: هر کله چې د شرط جواب اسمیه جمله وي که مثبته وي او که منفي د فاء راوړل یا اقتران له هغه سره واجب دی.

لکه: من جدّ فالنجاح حلیفه: ( مثبته اسمیه جمله د شرط جواب ).

إن ینصرکم الله فلا غالب علیکم. منفي اسمیه جمله د شرط جواب.

ب: فعلیه طلبیه جمله:

کله چې د شرط جواب فعلیه جمله ــ امر ــ نهی یا استفهام وي د فاء راوړل د جواب د جملې په اول کې لازم دی.

لکه: إذا مرضت فاتبع نصح الطبیب ( امر دی ).

إن حدثتک بعمل فلا نقصر فیه ( نهی دی ).

ج: هغه فعلیه جمله چې فعل یې جامد وي یعنې فعل عیر متصرف وي لکه: لیس، عسی او تفهم لکه: من افنتی الرفلیس بامین.

إن تتعاونو افنعم ما تصنعون.

د: هغه فعلیه جمله چې په لن ــ ما ــ قد ــ سین ــ او یا سوف باندې مسبوق وي لکه: إن عصیت امري فلن تنال محبتی.

إن تجتهد فما امتنع عن مکافاتک من أهمل فی عمله فقد اساء الی وطنه. من ظلم الناس فسوف یندم.

کتنه:

د شرط جازم ادوات د شرط او د جزا فعلونه مجزوم ګرځوي کله چې د شرط جواب له فاء سره مقترن نه وي. لکه: من يعمل ينجح. خو کله چې جواب له فاء سره مقترن وي. د شرط اداة يواځې د شرط فعل مجزوم ګرځوي، او د جواب فعل دې موقعيت له وجهې په کلام کې مرفوع، منصوب يا مجزوم دی او د شرط د جواب جمله په محل دې جزم کې دی. لکه : من يعمل فسوف ينجح. ينجح: مضارع فعل مرفوع په ضمه او فاعل يې مستتر ضمير چې تقدير يې هو دی او ټوله جمله فعل له فاعل سره په محل دې جزم کې د شرط جواب

**د قسم طريقه ( اسلوب )**

١. د قسم طريقه د تأکيد له طريقو څخه يوه طريقه ده چې دې قسم له اداتو، مقسم به، او د قسم له جواب څخه جوړه شوی ده.

لکه: والله لن يضيع حقنا: او د قسم حرف. الله و جلاله لفظ مقسم به مجرور په کسره. لن يضيع حقنا د قسم حواب د پورتنيو درى واړو ارکانو شرحه په لاندې ډول ده:

د قسم ادوات عبارت دی له: واو ــ باء ــ تا دا د جر حروف دي چې خپل وروستی اسم مجرور ګرځوی په دوی کې ( تا ) يواځي د جلاله په لفظ ( الله ) باندې دا خليږي.

ب: مقسم به: په عام ډول د جلاله له لفظ ( الله ) مقسم به دی خو عادتاً داسې نور الفاظ هم شته دي چې دې مقسم به په ډول استعمال شوي لکه: حقک ــ حياتک.

ج: د قسم جواب:

د قسم جواب يا اسميه يا فعليه جمله وي.

کله چې د قسم جواب اسميه جمله او مثبته وي واجب دی چې په إن او لام او يا يواځي په إنّ مؤکد وګرځي. لکه: والله إن فاعل الخير لمحبوب يا والله إن فاعل الخير محبوب.

کله چې د قسم جواب فعليه مثبته جمله او فعل ماضي وي. جواب د لام او قد پواسطه مؤکد ګرځي. لکه: تاالله لقد اطعت امرک.
او که چیرې د قسم جواب فعليه مثبته مضارع جمله وي د قسم په لام او د تاکيد په نون مؤکد ګرځي. لکه: والله لاحاسبن المقصر.
خو کله چې د قسم جواب منفي وي جمله که فعليه وي که اسميه مؤکد نګرځي.
لکه: وحقک لا نجاح الا بالمثابرة: په پورتني مثال کې جواب دې قسم اسميه منفي جمله دی او نه مؤکد شوی.
والله ما يضيع مجهودک: په دې جمله کې جواب دې قسم منفي فعليه جمله ده چې ندی مؤکد شوی.
۲. د شرط او قسم پیوستون: ( اجتماع )
مخکې یوه شوو چې شرط او قسم دواړه جواب ته ضرورت لري او پدې هم پوه شوو چې دې شرط جواب یا مجزوم یا له فاء سره مقترن وي او په دې هم پوه شوو چې ځنې د قسم ځوابونه مؤکد او ځیې نور غیر مؤکد دي.
لکه: إن اتقنت العمل والله تنجح: تنجح مجزوم دی ځکه چې د شرط فعل له قسم څخه مخکې ذکر شوی.
والله إن اتقنت العمل لتنجحن: چې دې لام او نون سره مؤکد شوی ځکه چې قسم دی او په دې ترکیب کې قسم مخکې له شرط څخه ذکر شوی.

**د مدح او ذم طريقه ( اسلوب )**

که څه هم مدح او ذم په مختلفو طریقو ممکن دی چې ښکاره شي خو بیا هم په عربي ژبه کې یوه خاصه طریقه د مدح او ذم لپاره وجود لري چې درې ارکان لري.
دې «نِعمَ» فعل د مدح لپاره او د «بئس» فعل د ذم لپاره او د دوی دواړو فاعل چې په لاندې جملو کې د دې دواړو ترکیب داسې څرګند شوی.
نعم الفاتح عمرو بئس القول شهادة الزور.

په دواړو پورتنيو مثالونو کې ( نعم او بئس ) افعال فاتح او قول فاعل، عمرو او شهادة الزور، مخسوص بالمدح اومخصوص بالذم دی.

د مدح او ذم د طريقې ارکان په لاندې ډول شرحه کيږي.

۱. د نعم او بئس افعال:

«نعم» جامد فعل ( يعنې مضارع او امر نه ترې جوړيږي ) او په مدح دلالت کوي.

(( بئس )) جامد فعل او په ذم دلالت کوي.

د عدد نښې په نعم او بئس نه ملحق کيږي يعنې مثنی او جمع نه کيږي او د تأنيث د علامې دواړوته ( نعم. بئس ) جائز دي نه لازم.

لکه: نعم الصفة حب الوطن يا نعمت الصفة حب الوطن.

۲. د نعم او بئس فاعل:

د نعم او بئس فاعل څلور حالته لري:

الف: په « ال » مقترن وي لکه: نعم الرجل الصانع المجد.

الرجل: د نعم فاعل مرفوع په ضمه.

« بئس الاسم الفسوق بعد الإيمان » الاسم: فاعل د بئس مرفوع په ضمه.

ب: هغه اسم چې مقترن په «ال» ته مضاف وي لکه: بئس مصير الشرار النسجون.

مصير دې بئس فاعل مرفوع په ضمه او مقترن په «ال» ته مضاف.

ج: مبهم ضمير مميز په نکره. لکه: نعم خلقا المانة. فاعل مستتر ضمير چې تقدير يې هو او خلقاً تمييز منصوب په فتحه.

د: موصول اسم ( ما او من ) لکه: بئس ما تفعل السرقه. ما: موصول اسم مبني پرسکون په محل دې رفع کې فاعل دی «بئس».

۳. المخصوص بالمدح والذم:

مخصوص بالمدح يا مخصوص بالذم هغه اسم ته ويل کيږي چې د هغه دې مدح يا د هغه دې ذم قصد شوی وي او د هر يو اعراب رفع دی څکه چې مبتدأ وي مدح يا ذم فعل له فاعل سره خبر دی مخصوص بالمدح ويا ذم گرځي. لکه:

نعم الصديق الكتاب: الكتاب: مبتدأ مرفوع په ضمه او هغه جمله چې له نعم او د هغه له فاعل څخه جوړه شوی په محل دې رفع کې مقدم خبر او دا جائز دی چې مخصوص بالمدح او يا ذم له خپل فاعل سره دی مدح او يا ذم له فعلونو څخه مخکې راوړل شي لکه: الکتاب نعم الصديق: چې په دې صورت کې مخصوص لالمدح مبتدأ او ما بعد يې خبر ګرځي.

**يادونه:**

« حبذا » په مدح که لکه: «نعم» او «لاحبذا» په ذم کې لکه «بئس» کارول کيږي او په دواړو صورتونو کې دې «حب» فاعل «ذا» دی، مخصوص بالمدح او بالذم مبتدأ اعراب کيږي. لکه: حبذا الصدقة. لا حبذا النفاق.

لا: د نفی حرف. حب: د ماضي فعل جامد. ذا: د اشاري اسم مبني او په محل دې رفع کې فاعل. النفاق: مخصوص بالذم مبتدأ مرفوع او جمله له فعل ( حب ) او فاعل يې ( ذا ) په محل دې رفع کې مقدم خبر.

**د تعجب طريقه ( اسلوب )**

١. تعجب هم يوه خاصه طريقه لري چې د يوه شي دې لوړوالي يا ويرې د صفت د ښودلو لپاره کارول کيږي. لکه: ما اعظم خالق العالم: ( څومره لوی او لوړ دی د مخلوقاتو پيدا کونکی )

٢. تعجب دوه صيغې لري: يوه د أفعل ماضي وزن چې په «ما» باندې مسبوق دی.

او بله د امر د فعل په وزن چې ( أفعل ) دی. په لومړي وزن کې د ضيغه کې مستتر ضمير فاعل دی چې «ما» ته راجع کيږي او هر هغه اسم او يا ضمير چې له أفعل څخه وروسته ذکر کيږي د هغه مفعول ګرځي، خو دې «أفعل» فاعل په حرف زائد باندې مجرور ګرځي، نو دې تعجب صيغې عبارت دي له: ما أفعل، او أفعل به څخه هغه فعل چې دا دواړه صيغې له هغه څخه راتلای شي لاندې شرطونه بايد ولري.

الف: ثلاثي مجرد وي. لکه: جَمُلَ ــ صَدَقَ.

ب: تام فعل وی: یعنې د افعال ناقصه و له ډلې نه وي لکه: کان او د هغه اخوات.

ج: له هغه فعل څخه مشتق وصف ( اسم فاعل ــ صفت مشبه ــ اسم مفعول ) په وزن دې أفغل چې مؤنث یې پر وزن دې « فعلاء » راځي.

د: مثبت وي نه منفي.

هــ: مبني للفاعل وي ( معلوم ).

و: متصرف وي ( یعنې هغه فعل چې ماضي، مضارع، او امر ولري ) لکه: ما أجمل السماء ( ما ) نکره اسم په مانا دې «شئُ عظیمُ» مبني پر سکون په محل دی رفع کې مبتدأ. أجمل د ماضي فعل. فاعل یې مستتر ضمیر ( واجب الاستتار ) چې تقدیر یې « هو » دی.

السماء: مفعول به منصوب په فتحه جوړه شوی جمله له فعل، فاعل، او مفعول به څخه په محل دې رفع کې خبر دی «ما» .

د أجمل بالسماء ماضي د امر په ډول مبني پر مقدره فتحه. بالسماء. بازائده.

السماء مرفوع په مقدره ضمه پر همزه فاعل.

۳. کله چې فعل دری حرفي ( ثلاثي ) نوی لکه: تفوق، انتصر، یا فعل ناقص وي لکه: کان، ضلل... یا داسې فعل وي چې د هغه وصف داسې أفعل وي چې مؤنث یې پر وزن د فعلاء راځي. لکه: سِورَ، حَمیرَ... د تعجب په جوړولو کې له أشد یا اشدد به یا د دوی په شان له نورو کلمو څخه کار اخیستل کیږي په دې ډول چې وروسته له ما اشد او اشدد به څخه صریح مصدر یا قول مصدر راوړو. لکه: ما اصعب کون الدواء مراً ( ناقص فعل ). ما اروع أن ینتصر الجیش ( غیر ثلاثي فعل ). ما أشد سواد اللیل ( وصف له هغه سواد څخه وزن دې أفعل مؤنث فعلاء راځي ).

۴. کله فعل منفي وي: لکه: لایصدق. یا مبني للمجهول وي لکه: تعِالُ په نوموړی طریقه متوصل کیږو لکه: ما اقبح ان لا یصدق الصدیق.

۵. له جامد فعل څخه تعجب نه شي راتلای لکه: له عسی او لیس، څخه.

يادونه: تعجب لپاره ځيني غير قياسي صيغې هم راځي لکه: سبحان الله. الله، او يا لکه: له من بطل.

**د اختصاص طريقه ( اسلوب )**

دې اختصاص يوه داسې طريقه دی چې د متکلم وروسته د متکلم يا د متکلم مع الغير د ضمير له ذکريا يادولو څخه داسې ظاهر رسم ذکر کړی چې دې ضمير مقصود واضح شي. لکه: أنا ــ الطالب ــ اتلقي العلم ــ نحن الجنود ــ ندافع عن الوطن ــ لنا ــ معشرالمسلمين قوة إيمانية.

هغه اسم چې دې ضمير مقصود توضيح کوي ( الطالب، الجنود، معشرالمسلمين ) د ( مخصوص ) په نامه يادېږي او تل منصوب دی ځکه د هغه فعل لپاره چې حذف يې واجب دی مفعول به دی او تقدير يې په دې طريقه ( اسلوب ) کې ( أخص ) کېږي.

کله کله مختص ( مخصوص ) دی « اَيُها يا ايتُها ) لفظ وي چې وروسته لدې دواړو لفظونو ظاهر مرفوع اسم ذکر کېږي. په دې صورت کې دې « اَيُ » يا « اَيةُ » لفظونه مخصوص دي او مبني پر ضمه او په محل دې نصک کې اعراب ورکول کېږي. لکه: إننا أيها الطباء ــ نعالج المرضى: أى مخصوص مبني پر ضمې په محل دې نصب کې او « هاء » زائده. الطباء: لغت مرفوع په ضمه.

**د اغراء او تحذير طريقه ( اسلوب )**

١. اغراء: د مخاطب هڅول دي د يوه ښه کار کړلو ته تر څويې تر سره کړي. چې نوموړی ښه او نيک کار دی « مغری به » په نوم يادېږي.
تحذير: مخاطب ته پوهه ورکول د يوه بد کار په اړه تر څو له هغه څخه ځان وژغوري. « مغری به » او « محذر منه » تل د محذوف فعل په واسطه منصوب وي. لکه: الصدق. الصدق: لومړی صدق مفعول به منصوب په محذوف فعل چې تقدير يې الزم او دوهم صدق لفظي تأكيد منصوب د تابعيت په لحاظ.

٢. د اغراء او تحذير صورتونه:

اغراء او تحذير په لاندې ډولونو استعماليږي:

الف: مغرى به اومحذر منه مکرر ذکر شي. لکه: الامانة الامانة،العدو العدو.

ب: چې مغرى به او محذر منه معطوف عليه ذکر شي. لکه: الصدق والاخلاص، النفاق والخيانة.

کتنه:

تحذير څلورم ډول هم لري او هغه عبارت دی له دينه چې: محذوف وروسته له لفظ دې « إيا » بې له عطف يا معطوف په واو او يا مجرور په من ذکر شي. لکه: إياک التهاون ــ اياک والتهاون ــ إياک من التهاون: إياک. إيا: مفعول به مبني پر محل دې نصب کې او عامل دې نصب يې محذوف فعل ــ کاف د خطاب حرف.

والتهاون: واو حرف د عطف ــ التهاون ــ مفعول به او عامل يې محذوف فعل چې تقدير يې « احذر» دی.

د استيغاثې طريقه ( اسلوب )

١. د استيغاثې طريقه يو له طريقو د نداء څخه دی چې د يوه سختي د خلاصون لپاره کارول کيږي. لکه: بالرجال الانقاذ لضالين.

١. د استعيغاثې طريقه: درى ارکان لري.

الف: د استيغاثې اداة چې يوائې ( ياء ) دی او د ندا په نورو ادواتو استغاثه نه کيږي.

ب: مستغاث به: تل په مفتوح لام مجرور وي. لکه: يالرجال الانقاذ په پورتني مثال کې.

ج: المستغاث له: چې مجرور په لام مکسوره وي. لکه: للضالين: په پورتني مثال کې او هم جائز چې مستغاث له مجرور په من شي. لکه: يا للمصلحين من الفساد.

**یادونه:**

**ډیر ځله د استغاثې طریقه له تعجب څخه د تعبیر لپاره کارول کیږي. لکه: یا للعجب یا لجمال الظهور: اوپه دې حالت کې مستغاث له حذفیږي. چې دا طریقه په نامه دې ( تعجب نداء په طریقې ) یادیږي.**

**د استفهام طریقه ( اسلوب )**

**۱. د استفهام د طریقې تعریف:**

**د استفهام طریقه داسې یوه طریقه ده چې د یوه شي دې پوښتلو لپاره کارول کیږي.**

**لکه: متی الإمتحان؟**

**دا طریقه داسې ادوات لري چې دې استفهام په ادواتو یادیږي. او هر استفهام جواب غواړي.**

**د استفهام ادوات دوه ډوله دي:**

**د اسفهام حرف ــ د اسفهام اسمونه.**

**«هل» په دې توري د مثبتې جملې له مضمون څخه استفهام پوښتنې تر سره کیږي. او که چیرې جواب مثبت وي په نعم او که منفي وي په «لا» جواب ورکول کیږي.**

**لکه: هل قرأن هذ الکتاب؟ نعم یا لا.**

**همزه پر دریو طریقو او موخو لپاره کارول کیږي.**

**الف: دې دوو شیانو د تعیین د طلب لپاره استعمالیږي په دې صورت کې وروسته له همزې ( ام ) دې معادلت ذکر کیږي. او جواب دې استفهام تعیین دې مستفهم عنه ( هغه شی چې د هغه د پیژندلو لپاره پوښتنه شوی وي ). لکه: ارأیت محمدً ام علیا: په جواب کې محمداً او یا علیا ویل کیږي.**

**ب: د همزې په واسطه د «هل» په شان د مثبتې جملې د مضمون څخه پوښتنه تر سره کیږي چې جواب یې نعم یا لا دی.**

ج: همدا ډول د همزې په واسطه د منفي جملې له مضمون څخه استفهام ( پوښتنه ) تر سره کيږي. په دې ډول که چيرې جواب مثبت وي ( بلي ) او که منفي وي ( نعم ) ويل کيږي. لکه: الم تقرأ هذالکتاب: نعم ( لم أقرأه )

۲. د استفهام اسمونه:

دې استفهام اسمونه هغه ادوات دي چې د هغوی پواسطه د مفرد له تعيين څخه پوښتنه تر سره کيږي. چې په لاندې ډول دی.

( من ) د ذوی لعقولو د پوښتنې لپاره. لکه: من يرفع العلم علی ارض بلادنا. ( ما ) د غير ذوی العقولو د پوښتنې لپاره. لکه: ماهی القصص اللی قرأتها. متی: د زمانې د پوښتنې لپاره. متی حضرت؟

أين: د مکان د پوښتنې لپاره. لکه: أين تقع کابل؟

کم: د عدد د استفهام يا پوښتنې لپاره. لکه: کم کتابا قرأت؟

کيف: د حالت د پوښتنې يا استفها لپاره. لکه: کيف جاء زيد؟

ای: دې «أیَّ» د مضاف اليه دې استفهام لپاره. أی طالب نحج؟

علی أی حال أنت.

کوم اسفهام چې به نومورو اداتو تر سره کيږي د هغوی جواب د مستفهم عنه تعيين دی. د دې استفهام اسمونه پرته له «ای» څخه نور ټول مبني دی. او «ای» د موقعيت له حيثه اعراب ورکول کيږي.

لکه: من فتح ميوند؟ من د استفهام اسم مبني په محل دې رفع کې مبتدأ. متی الامتحان؟ متی: د استفهام په اسم مبني په محل دې رفع کې مقدم خبر. أين تقع جامعه کابول؟ أين استفهام اسم مبني په محل دې رفع کې مقدم خبر. کيف حالک؟ کيف: د استفهام اسم مبني په محل دې رفع کې مقدم خبر.

**يادونه:**

۱. د استفهام ادوات د کلام په لومړي سر کې واقع کيږي لکه څنګه چې مو وليدل او له دوی څخه مخکې يواځې حرف جر او مضاف راځي. لکه: من أين لکه هذا؟ أين

اداة استفهام مسبوق به حرف جر دی. منزل من هذه العمارة. من اداة دې استفهام چې په مضاف مسبوق شوی.

کله چې د جر حرف په استفهام اسم وي «ما» داخل شي د هغه الف حذفیږي. لکه: بم، لم او عمّ یتساءلون.

۱. ډیر ځله وروسته له « من » د استفهام څخه دې « ذا » کلمه زیاتیږي چې په دې حالت کې «ذا» د استفهام اسم سره یوه کلمه بلل کیږي. لکه: من ذا عندک؟

من ذا: د استفهام مبني پر سکون په محل دې رفع کې مبتدأ او عندک ( ظرف ) د هغه خبر.

مثل: ماذا قرأت. د استفهام اسم مبني پر سکون په محل دې نصب کې مفعول به د ( قرأت ) لپاره.

کله وروسته له «من ذا» او «ماذا» دې «الذی» کلمه ذکر کیږي او پدې حالت کې د «الذی» د مبتدأ خبر وي او وروستی جمله د «الذی» صله وي. لکه: من ذالذی جاء؟ من ذا: دې استفهام اسم په مبني په محل دې رفع کې مبتدأ

جاء: ماضي فعل او فاعل یې مستتر ضمیر دی چې تقدیر یې «هو» دی فعل او فاعل فعلیه جمله صله د موصول.

## شپږم باب

# داعراب بیلګې

**۱. د معرب اسمونه د اعراب بیلګې:**

الف: د مرفوع اسمونه دې اعراب مختلفې بیلګې.

قول معروف و مغفرة خیر من صدقة یتبعها اذی والله غنیٌّ حلیم.

قول: مبتدأ مرفوع په ضمه.

مغفرة: معطوف په قول مرفوع په ضمه.

خیرُ: خبر دی مبتدأ مرفوع په ضمه.

الله: دوهم خبر مرفوع په ضمه.

یسأل المربیان کلاهما عن تهذیب الشئ.

المربیان: فاعل مرفوع په الف ځکه چې مثنی دی.

کلا: دې مرفوع اسم تأکید او مرفوع به الف ځکه چې له مثنی سره ملحق دی.

لولا اتحاد لهلکت الامة.

الاتحاد: مبتدأ مرفوع په ضمه اوخبر محذوف وجوبا چې تقدیر یې موجود دی د خبر حذف کله چې مبتدأ په لولا مسبوق شي واجب دی، ځکه چې جواب دی لولا په ( موجود ) چې خبر دی دلالت کوي مبتدأ له محذوف خبر سره چې ( موجود ) دی د شرط جمله.

الامة: فاعل مرفوع په ضمه.

ینتظر أن یزید انتاجنا الضاعي:

أن: مصدري او د نصب حرف.

یزید: د مضارع فعل منصوب په فتحه او مسول مصدر له أنَّ او فعل له أن یزید = زیادة په محل دې رفع کې نائب.

انتاج: د یزید فاعل مرفوع په ضمه.

الضاعي: د انتاج لپاره نعت مرفوع په ضمه.

**نعم المعين في المصائب أخوک:**

المعين: د نعم فاعل مرفوع په ضمه.

أخو: مخصوص بالمدح موخره مبتدأ مرفوع په واو د دې لپاره چې د اسماء خمسۀ څخه دی. جمله چې له فعل او فاعل څخه جوړه ده مقدم خبر دی. هم دا ډول جائز دی چې «أخو» د محذوف مبتدأ خبر وي. په دې صورت کې «نعم العين فی الصائب أخوک» جمله ګرځي.

ب: د منصوب اسمونه دې اعراب بيللګې:

إن الحسنات يذهبن السيأت.

الحسناتِ: د إن اسم منصوب په کسره ځکه چې جمع مؤنثه سالمه ده.

السيأت: مفعول به منصوب په کسره ځکه چې جمع مؤنثه سالمه ده.

اهدنا لصرات المستقيم صراط الذين أنعمت عليهم.

الصراط: دوهمه مفعول به منصوب په فتحه.

المستقيم حقيقي نعت د صراط لپاره منصوب په فتحه.

صراط: بدل او منصوب په فتحه.

**إن مع العسر يسرًا:**

يسرًا: د إنّ مؤخر اسم منصوب په فتحه او شبه جمله «مع العسر» مقدم خبر.

إنا ارسلناک بالحق بشيرا و نذيرًا:

بشيرًا: حال منصوب په فتحه.

نذيرًا: معطوف په حال منصوب پر فتحه.

**إنا فتحنالک فتحا مبينا:**

فتحاً: مفعول مطلق منصوب پر فتحه.

مبيناً: د مفعول مطلق صفت ( نعت ) پر فتحه.

**كل الطائرات عادت اليوم الاطائرةً:**

اليوم: د زمان ظرف مفعول فيه منصوب په فتحه.
طائرة: مستثنی په «الاّ» منصوق په فتحه.
ج: د مجرور اسمونه د اعراب بیلګې:
بسم الله الرحمن الرحیم ــ الحمد الله رب العالمین:
اسم: مسبوق په حرف جر «باء» مجرور په کسره.
الله: مضاف الیه مجرور په کسره.
الرحیم: نعت د الله مجرور په کسره.
رب: د الله لپاره نعت مجرور په کسره.
العالمین: مضاف الیه مجرور په «یاء» څکه چې په جمع مذکر سالمي ملحق دی.
و زعت الارباح عمال المصنع جمیعهم:
عمال: مسبوق په حرف جر «علی» مجرور په کسره.
المصنع: مضاف الیه مجرور په کسره.
جمیع: تأکید د عُمالِ لپاره مجرور په کسره.

۲. د مبني اسمونو دې اعراب بیلګې:
۱. إنّ هذا املنا فیکم:
هذا: و اشاري اسم مبني پرسکون په محل دې نصب کې اسم دی.
إنّ الذی یأتی قریب ولکن الذی بمضی بعید:
الذی: لومړی الذی د موصولي اسم مبني پر سکون په محل دې رفع کې مبتدأ.
الذی: دوهمه الذی د موصول اسم مبني پر سکون په محل دې نصب کې اسم ( لکنّ
ایاکن صافح المدرس.
ایاکم: منفصل ضمیر مبني په محل دې نصب کې مفعول به.
لم یکافأ الانحن:
نحن: منفصل ضمیر مبني په ضمه په محل دې رفع کې نائب فاعل.

من قابلت؟

من: من استفهاميه مبني پر سکون په محل دې نصب کې مفعول به.

تاء: متصل ضمير مبني پر فتحه په محل دې رفع کې فاعل.

أين قضيت العطلة؟

أين: د استفهام اسم مبني پر فتحه په محل دې نصب کې مفعول فيه.

۳. د مبني افعالو د اعراب بيلګې:

سعى رب الاسرة فى الصلح.

سعى: د ماضي فعل مبني پر مقدره فتحه په الف د لوست والي لامله.

ارض بنصيبيک:

ارض: د امر فعل مبني پر حذف د حرف علت، ځکه چې تلفظ پرې ګران دی.

ادوا: د امر فعل مبني پر حذف د نون، و او د هغه فاعل.

لا تحسبن النجاح سهل المنال:

تحسبنَّ: فعل مضارع مبني پر فتحه چې له نون د تأکيد سره يوځای شوی.

۴. د معربو افعالو د اعراب بيلګې:

أنى أحب الذين يؤدون و احبهم کاملاً:

أحبُّ: مضارع فعل مرفوع په ضمه ـــ او فاعل يې مستتر ضمير په تقدير دې « أنا ».

يودُّون: مضارع فعل مرفوع په ثبوت د نون.

يسرنى أن تنجح فى الامتحان:

يَسرُّ: مضارع فعل مرفوع په ضمه.

تنجح: مضارع فعل منصوب په فتحه فاعل يې مستتر ضمير په تقدير د «أنت».

و إن تعدوا نعمة الله لا تحصوها:

تعدوا: مضارع فعل مجزوم په حذف د نون، واو د «إن» فاعل.

تحصوا: مضارع فعل مجزوم په حذف د نون، واو فاعل.

۵. دې لاندې مبارک اَية إعراب:

«و اَت ذالقربى حقه والمسكين و إبن السبيل ولا تبذر تبذيرا إن المبذرين كانو إخوان الشياطين ».

و اَت: واو عاطفه په ماقبل. آت: د امر فعل پر حذف دې حرف علت او فاعل مستتر ضمير چې «أنت» فرضول كيږي.

ذا: مفعول به منصوب په الف ځکه چې «ذا» د اسماء وخمسهؤ له ډلې څخه دى.

القربى: مضاف اليه مجرور په مقدره کسره په الف ځکه چې نطق پرې گران دى.

حقَّهُ: حق: دوهم مفعول به. ها: متصل ضمير مبني پر محل دې جر کې مضاف اليه.

والمسكين: واو د عطف حرف: مسكين: معطوف پر منصوب، منصوب پر فتحه.

و إبن: واو عطف حرف: إبن معطوف پر منصوب، منصوب پر فتحه.

السبيل: مضاف اليه مجرور په كسره.

ولا: واو عاطف. لا: حرف ينهى او جزم.

تبذر: مضارع فعل مجزوم په سكون. فاعل يې مستتر ضمير چې «أنت» فرضول كيږي.

تبذيرا: مفعول مطلق «مؤكد» منصوب په فتحه.

المنذرين: د اِنَّ إسم منصوب په ياء ځکه چې جمع مذكره سالمه ده.

كانوا: كان د ماضي ناسخ فعل ــ واو د جمع مبني په محل دې رفع کې اسم د كان.

إخوان: خبر د كان منصوب په فتحه او جمله له ماضي ناسخ فعل او د هغه له اسم او خبر سره په محل دې رفع کې خبر دى «إنّ».

الشياطين: مضاف ليه مجرور په كسره.

٦. د يوې ټوټې نثر اعراب:

إن قيادة المشروعات الكبرى قيادة ناجحة فى مجتع نياضل و يجدد نسيج حياته محتاجه. أن يرعي أنباء الشعب منفعة الوطن و إن يؤ منو ابان فى الاسراف أهداراً.

إنّ: د تأكيد او نصب حرف له ناسخ د مبتدأ.

قيادة: د إنّ اسم منصوب په فتحه.

المشروعات: مضاف اليه مجرور په کسره.

الکبری: د مشروعات صفت ( نعت ) مجرور په مقدره کسره پر الف د نطق د ګران والی له امله.

قيادة: مفعول مطلق ( د نوع څرګندونکی ) منصوب په فتحه.

ناجحة: صفت منصوب په فتحه ــ فی ــ د جر حرف.

مجتمع: مجرور اسم دې «فی» پواسطه او د جر علامه کسره.

يناضل: مضارع فعل مرفوع په ضمه. فاعل يې مستتر ضمير چې تقدير يې ( هو ) دی او جمله فعليه مرکبه له فعل او فاعل په محل دې جر کې نعت ( صفت ) مجتمع.

و يجدد: واو د عطف حرف، يجدد د مضارع فعل مرفوع په ضمه معطوف فاعل يې مستتر ضمير چې تقدير يې «هو» دی.

نيسج: مفعول به منصوب په فتحه.

حياته: حياة: مضاف ليه مجرور په کسره، هاء ضمير مبني په کسره په محل دې جر کې مضاف ليه.

محتاجة: خبر د اِنّ مرفوع په ضمه.

أن: مصدري او د مضارع د نصب حرف.

يرعي: مضارع فعل منصوب پهٔ أن او د نصب علامه مقدره فتحه په الف ځکه چې فتحه په الف د لوستلو وړ ندی او الف يوائې سکون مني.

أبناء: فاعل مرفوع په ضمه.

الشعب: مضاف ليه مجرور په کسره.

منفعة: مفعول به منصوب په فتحه.

الوطن: مضاف اليه مجرور په کسره.

و أن: واو حرف د عطف ــ أن مصدري او د نصب حرف.

يؤمنوا: مضارع فعل منصوب په حذف د نون، واو د جمع فاعل.

بأن: باء جاره ( دجر حرف ) أن: حرف ناسخ.
في السراف: جار او مجرور مقدم خبر د أنّ.
أهداراً: إسم د أنّ سوَخر منصوب په فتحه.
لثروته: لام د حرف جر ــ ثروة مجرور په ظاهره كسره ــ ها ــ په محل دې جر كې مضاف اليه د ثروة.

۷. د يوه بيت اعراب:

ولد الهدى فا الكائنات ضياء

و قم الزمان تبسمم و زمان و ثناء

ولد: ماضي مجهول فعل مبني پر فتحه.
الهدى: نائب فاعل مرفوع په مقدره ضمه پر الف د تعذر له وجهې.
فالكائنات: فاء حرف د عطف. كائنات: مبتدأ مرفوع په ضمه.
ضياء: خبر دې مبتدأ مرفوع پر ضمه.
وقم: واو حرف عطف ــ قم مبتدأ په كسره.
تبسم: خبر د مبتدأ مرفوع په ضمه.
و ثناء واو حرف د عطف. ثنا: معطوف په تبسم، مرفوع په ضمه.
الزمان: مضاف اليه مجرور په كسره.
تبسم: خبر د مبتدا مرفوع په ضمه.
و ثناء: واو حرف د عطف. ثنا: معطوف په تبسم، مرفوع په ضمه.

| مرفوع | منصوب | مجرور |
| --- | --- | --- |
| **د رفع علامې:** ضمه: په مفرد، جمع سالمه مؤنثه جمع تکثیر (مکسره) الف: په مثنی. واو: په مذکره جمع سالمه او اسماءو خمسه و کې. د رفع حالات: ۱. مبتدأ هغه اسم چې د هغه پر اړه حکم بیانیږي. ۲. خبر: بیان دې حکم یا صفت دې مبتدا چې له مبتدا سره اسمیه جمله جوړه وي. ۳. د کان اسم: هر هغه مبیتدا چې په کان او اخواتو کې مسبوق شي. ۴. خبر دې إن: هر هغه مبتدا چې یو له حروفو مشبه بالفعل څخه د هغه ناسخ وي. ۵. فاعل: هغه مرفوع چې وروسته له معلوم فعل یا وروسته له هغه اسم چې په مانا دې معلوم فعل واقع شي او په داسې شي دلالت وکړي چې فعل ترې صادر شوی. | **د نصب علامې:** فتحه: په مفرد او مکسره جمع کې. یاء: په مثنی مذکره جمع سالمه کې. کسره: په مؤنثه جمع سالمه کې. الف: په اسماء و خمسه ؤ کې. د نصب حالات: ۱. د کان خبر: او هر هغه څه چې د کان په اخواتو مسبوق شي. ۲. إسم د إنِّ: هر هغه مبتدا چې مباشره مسبوق پهٔ یو دې حروفو دې مثبته بالفعل وي. ۲. مفعول به: هغه منصوب اسم چې په شخص یا شی د فاعل فعل واقع شوی. ۴. مفعول منصوب مصدر دی چې دې فعل یا عامل فعل په مانا د عدد یا نوع د خپل عامل د بیان لپاره ذکر کیږي. | **د جر علامې:** کسره: په مفرد، مکسر جمع، جمع سالمه، مؤنثه. یاء: په مثنی جمع سالمه مذکره او اسماء و خمسه و کې. د جر حالات: ۱. وروسته له حرف جر څخه. ۲. مضاف الیه: یو اسم چې له بل هغه اسم سره چې له ده څخه مخکې ذکر شوی نسبت ورکوي. ۳. د مجرور اسم تابع: نعت، عطف، تاکید، بدل او بیان. |

| مرفوع | منصوب | مجرور |
|---|---|---|
| ٦.نائب فاعل: هغه موفوع اسم چې وروسته له مجهول فعل یا هغه اسم چې دې مجهول فعل عمل کوي واقع شوی وي او دلالت وکړي پر هغه فعل پرې واقع شوی. ٧. هغه تابع دې چې د منعوت یو صفت بیانوي. عطف: هغه تابع چې د ده او تابع تر منځ یو حرف دی عطف واقع شي. توکید: هغه تابع دې چې دې محتمل توهم د رفع لپاره ذکر کیږي. بدل: هغه تابع چې په خپله مشبوع، یا د هغه په جز کوي چې هدف له ذکر د هغه تابع شخه خپله تابع وي نه مشبوع. | ٥.مفعول له: هغه اسم چې د فعل د واقع کیدلو سبب، یا د عامل فعل د وقوع علت ذکر کیږي. ٦. مفعول معه: هغه منصوب ذکر دی چې وروسته له واو د مع شخه ذکر کیږي تر څو پر مصاحبت دلالت وکړي. ٧. مفعول فیه: هغه منصوب اسم دې چې د فعل د حدوث زمان یا مکان بیانه وي. ٨. حال هغه لفظ دی چې د فاعل یا مفعول به حالت د فعل د وقوع په وخت کې ځرګند وي او منصوب دی. ٩. مستثنی: منصوب اسم دې چې وروسته له یو دې ادواتو دې استثناء ذکر کیږي تر څو په حکم کې خالف دی ماقبل د استثناء وي. ١٠. منادي: هغه اسم چې وروسته له ادواتو د نداء واقع شوی وي. ١١. تمییز : هغه اسم چې د یوه بل اسم د مقصود د بیانولو لپاره چې مبهم دی ذکر کیږي. ١٢. د منصوب اسم تابع: نعت، عطف، تاکید بدل. | |

**د مبني أسم خلاصه**

مبني هغه إسم دی چې د آخر شکل یې په سبب دې تغیر دی موقعیت یې په جمله کې بدلون نه منی.

۱. ضمیر: هغه إسم دی چې پر متکلم مخاطب او یا غائب دلالت کوي.

الف: منفصل د رفع ضمائر ( ضمیرونه ): انا ــ أنت ــ انتِ ــ انتما ــ أنتم ــ أنتن هی ــ هما ــ هم ــ هن.

ب: د نصب منفصل ضمیرئنه: أیای ــ ایانا ــ إیاک ــ اِیاکما ــ إیاکم ــ إیاکن ــ ایاه ــ ایاها ــ ایاهما ــ إیاهم ــ اِیاهن.

ج: د رفع متصل ضمیرونه: د فاعل ( تا ) ــ د فاعل ( نا ) الف د تثنیې ــ واو د جمع، یاء د مخاطبی. نئن دې نسوی.

هــ: د جر متصل ضمیرونه: د متکلم یاء ــ د مفعول ( نا ) د خطاب کاف ــ هاء د غائب.

و: مستتر ضمیرونه ښکاره صورت چې تلفظ پرې وشي نلري.

۱. د اشارې اسم: هغه مبني اسم دې چې پر یوه معین باندې د اشارې پواسطه دلالت کوي. هذا ــ هذه ــ هؤلاء ــ داک ــ تلک ــ اولک ــ هنا ــ ههنا ــ هناک ــ هنالک.

۲. موصول اسم: هغه اسم دی چې بدلول یې د یوې جملې پواسطه چې له هغه څخه وروسته راځي او د صله په نامه یادیږي تعیین کیږي. الذی ــ الذین ــ اللاتی ــ اللاءی ــ من ــ ما.

۳. د شرط اسم: هغه مبني اسم دی چې دوه جملې سر ه نښلوي لومړی جمله شرط او د هغه د شرط جزا کرځوی. من ما ــ مهما ــ متی ــ أیان ــ أین ــ أینما ــ أنی حیثما ــ کیفما ــ أی.

۴. د استفهام اسم: هغه مبني اسم دی چې دې پوښتنې لپاره استعمالیږي. من ــ ما ــ متی ــ أین ــ کم ــ کیف ــ أی.

۵. مرکب أعداد: له ( ۱۱ ــ۱۹ ) پرته له ( ۱۲ ) څخه.

٦. بعض ظروف او مرکب له ظروفو څخه. حیث ــ أمس ــ الأن ــ إذ ــ لیل ــ نها بین بین.

۷. اسم فعل: هغه اسم دی چې د ې فعل په مانا راځي. هیهاتــ شنان ــ سرعان ــ اَه ــ أف ــ أمین ــ علیک ــ حذار ــ صه ــ ایه ــ حيٍّ.

کله چې یو مبني اسم د رفع، نصب یا جر په موقعیت راشي د ورروستی برخې حرف یې په خپل حالت پاتې کیږي او کوم تغییر یې نه لفظاً او نه تقدیراً په شکل کې راځي بکله پهٔ محل دې رفع، نصب یا جر کې د موقعیت له حیثه اعراب ورکول کیږي.

## مبني فعل

د آخر شکل یې په سبب دې تغییر د موقعیت تغیر نه کوي

| ماضي | امر | هغه مضارع چې له نون دې نسوی یا نون دې توکید سره متصل وي. |
|---|---|---|
| ۱. مبني پر سکون چې په تاء د عاعل سره متصل وي. شکرتُ ــ شکرتما ــ شکرتم ــ شکرتن ــ ناء. لکه: شکرنا. نون پر ضمه چې په واو دجمع متصل وي. شکروا مبني پر فتحه چې له ضمیر سره متصل وي. شکر. د تانیث له تاء سره متصل وي. شکرتُ ــ الف دې اثنین سره متصل ئی. شکرا ــ شرکنا چې دې نصب له متصلو ضمائرو سره متصل وي. شکرنی ــ شکرنا ــ شکرک ــ شکرکما ــ شکرکم ــ شکره ــ شکرها ــ شکرهما ــ شکرهم ــ شکرهن | ۱. مبني په سکون چې له ضمیر سره متصل نوي. أشکر. چې له نون دې نسوی سره متصل وي. اشکرن. ۲. مبني په حذف د نون: چې متصل وي له الف د تثنیبې سره. اشکرا. واو د جمع: اشکرو. یاء د مخاطي سره. أشکرلی. ۳. مبني پر حذف دحرف علة چې معتل الاخر وي. الف: إرض. واو: إعف. یاء إرم. ۴. مبني پر فتحه متصل په. نون د تاکید: اشکرنّ | ۱. مبني پر سکون چې متصل وي په نون د نسوی. الفیتات یشکرن المدرسة. ۲. مبني پر فتحه چې متصل وي د توکید له نون سره. یشکرنَّ الله. یادونه: د فعل مضارع تئکید واجب دی کله چې جواب دې قم او مثبت وي. لکه: والله لا حاسبنّ المقصر. د مضارع فعل تاکید جائز وي کله چې پر مطلب دلالت وکړي لکه: لینفق القادرون او لینفقنّ القادرون. د مضارع فعل تاکید غیر له پورتنیو دوه حالاتو څخه ممتنع دی. لکه: تشرق الشمس کل صباح. |

# معرب فعل

## معرب فعل هغه مضارع فعل دی چې له نون د نسوی او نون د تاکید سره متصل شوی

| مرفوعه مضارع | منصوب مضارع | مجزومه مضارع |
|---|---|---|
| کله چې د نصب یا جزم په حرف مسبوق نوي. د رفع علامې:<br>۱. ظاهره ضمه: په صحیح الاخر مضارع کې. شکوُ. ۲. مقدره ضمه: په معتل الاخر مضارع کې په الف: یسعی معتل الاخر په واو یسمو.<br>معتل الاخر په یاء یرمي. مرفوع په ثبوت دې نون په افعال خمسهٔ وکې.<br>الف د اثنین: یشکران ـــ تشکران ـــ واو د دجمع: یشکرئن ـــ تشکرون یاء د مخاطبی. تشکرین. | چې په حروفو د نصب مسبوق وي. أن ـــ لن ـــ کی ـــ إذن ـــ لام د تعلیل ـــ فاء د سبب حتی.<br>د نصب علامز: ښکاره فتحه کله چې مضارع صحیح الاخر وي. لن ینکر. معتل الأخر په واو لکه: لن یشکو. معتل الاخر په یاء. لن یرقي.<br>۲. په مقدره فتحه: په معتل الاخر کې په الف. لن برضي.<br>۳. منصوب په حذف د نون په افعال خمسهٔ ؤ کې. لن تنکرا ـــ لن ینکرا ـــ لن تنکروا ـــ لن ینکروا ـــ لن تنکری. | کله چې مضارع مسبوق دی جزم په ادواتو وي د جزم ادوات په لاندې ډول دې.<br>۱. هغه حروف چې یو فعل مجزوم گرځوي. لن ـــ لما ـــ لام د امر ـــ لا د نهی.<br>.۲ هغه ادوات چې دوه فعلونه مجزوم گرځوي پرته له إن څخه نور ټول اسماء دي. إن ـــ من ـــ ما ـــ مهما ـــ متطی ـــ أیان ـــ أین ـــ أینما ـــ أنی ـــ حیثما ـــ کیفما ـــ أی.<br>د جزم علامې:<br>۱. په سکون مجزوم صحیح الاخر مضارع، لم ینکر.<br>۲. مجزوم په حذف د حرف علت په معتل الاخر کې په. الف: لم ارض.<br>په واو: لم ادع. په یاء لم اعص.<br>۳. مجزوم په حذف د نون په افعال خمسه و کې. تنکرا ـــ لم ینکرا ـــ لم تنکروا ـــ لم ینکروا ـــ لم تنکری. |

**حرف**

حرف د ځای له حیثه په کلام کې او تأثیر یې په وروستی کلمه کې هغه حروف چې یواځې خاص اسم باندې داخلیږي.

۱. د جر حروف: من ــ الی یمن ــ علی ــ فی ــ باء ــ کاف ــ لام ــ واو د قسم تاء حتی ــ ربَّ ــ مذ ــ منذ ــ واو د رب ــ عدا ــ خلا ــ حاشا.

دا حروف خپل وروستی اسم مجرور ګرځوي چې علامې یې په لاندې ډول دي.

مفرد مکسره جمع او مؤنثه جمع سالمه. مجرور په کسره. مثنی او مذکره جمع سالمه. مجرور په یاء.

غیر منصوب اسم چې له ال او اضافت څخه خالي وي مجرور په فتحه.

۲. مشبه بالفعل حروف ( إنَّ او د هغه أخوات ).

إنّ ــ أنّ ــ لکنّ ــ کأن ــ لعلُّ ــ لیث ــ لا. دا حروف مبتدأ او خبر داخلیږي. مبتدأ منصوب ګرځوي چې د هغوی دې اسم په نامه یادیږي او خبر مرفوع ګرځوي چې د مشبه بالفعل د خبر په نامه یادیږي.

۳. د نداء حروف: یا ــ أیا ــ هیا ــ أی ــ همزه ــ چې هر یویې مخکې له منادي څخه ذکر کیږي.

منادي منصوب وي که چیرې مضاف یا شبیه دې مضاف او یا غیر مقصوده نکره وي.

منادي په خپله علامه دې رفع کې ؤسي. که چیرې تحکم یا مقصوده نکره وي.

۴. د استثناء ( لا ) هغه اسم چې وروسته له إلاَّ واقع شی. منصوب وي که مستثنی منه ذکر شوی او کلام مثبت وي.

نصب او اتباع جائز دی که چیرې کلام منفي وي. او که چیرې مستثنی منه ذکر نوي او کلام منفي وي مستثنی د نوموړي اسم چې وروسته له الا دي د عامل د غوښتنې سره سم چې له الا مخکې ذکر شوی اعراب ورکول کیږي. او په دې حالت کې استثناء په نامه دې مغرغ نومول کیږي.

۵. دمعیت واو: دا واو د ( مع ) په مانا دې او په مصاحبت دلالت کوي او هغه اسم چې له ده وروسته ذکر کیږي منصوب وي او د مفعول معه په نامه یادیږي.

٦. د ابتدا لام: هغه لام دې چې دې کلام په اول کې ذکر کیږي اوکوم تاثیر د وروستي اسم په اعراب کې نلري.

**هغه حروف چې پر فعل داخلیږي**

۱. د نصب حروف:

أن ــ لن ــ اذن ــ د تعلیل لام ــ د جحود لام ــ د سببیت فاء ــ حتی.

دا حروف مضارع فعل منصوب ګرځوي او وروسته لدې حروفو په ملفوظه فتحه منصوب کیږي. او که چیرې صحیح الاخر یا معتل الاخر په واو یا یاء وه یا د افعال خمسه و څخه حذف د نون منصوب ګرځي.

۲. د جزم حروف:

لم ــ لما ــ لام د امر ــ لام د نهی ــ هر یو دا حروف پرته له إن څخه یو مضارع فعل چې لدوی وروسته واقع شي منصوب ګرځوي او لکه چې وویل شو دوه مضارع فعلونه مجزوم ګرځوي.

۳. قد:

دا حرف که چیرې له ماضي فعل څخه مخکې داسې تأکید افاده کوي او که چیرې له مضارع فعل څخه مخکې راشي تقلیل افاده کوي.

۴. «ما» او «لا» چې نافیه او «ما» ډیر ځله په ماضي فعل او «لا» په فعل داخلیږي د فعل په اعراب کوم خاص تاثیر نلري.

۵. سین او سوف:

دا دواړه حروف په مضارع فعل داخلیږي سین قریب مستقبل او سوف د بعید مستقبل افاده کوي او د فعل په اعراب کوم تاثیر نلري

**هغه حروف چې کله پر اسم او کله پر فعل داخلیږي**

**۱. د عطف حروف:**

**واو ــ فاء ــ ثم ــ ام ــ لکن ــ لاــ بل ــ حتی ــ دا حروف دې د دوو اسمونو او یا دوو فعلونو تر منځ واقع کیږي د ماقبل اعرابي حکم خپل مابعد ته هم ورکوي.**

**۲. د استفهام حروف هل او همزه:**

**د استفهام د ادواتو له ډلې څخه دا دواړه لفظونه هغه حروف دي چې په اول د کلام کې مخکې له اسم او یا فعل څخه راوړل کیږي او په خپل مابعد کې کوم اعرابي اثر نه راولي.**

**۳. د حال واو:**

**دا واو دې ذوالحال او هغه جملې تر منځ چې حال واقع کیږي رابطه واقع کیږي که جمله اسمیه وي او که فعلیه خو کومه فعلیه جمله چې فعل يې مثبته مضارع وي له دې حکم څخه مستثنی دې ځکه واو ته ضرورت نلري او کومه جمله چې ورروسته لدې واوه راځي په محل دې نصب که وي.**

**۴. د قسم لام:**

**هغه لام دې چې د قسم په جواب یه جمله کې ذکر کیږي خو په دې شرط چې جمله مثبته وي که چیرې جواب دې قسم منفي جمله وي په لام او یا غیر له لام څخه په بل شي نه مؤکد کیږي.**

**د جملې موقعیت د اعراب له حیثه**

**هر هغه جمله چې د مفرد اسم په ځای راشي هغه جمله په محل دې اعراب کې وي په محل دې رفع، نصب، جر او جزم کې چې جمله په ( ۱۴ ) ځایونو کې په محل دې اعراب راځي.**

**د رفع محل ( ۴ )**

**د نصب محل ( ۵ )**

**د جر محل ( ۳ )**

**د جزم محل ( ۲ )**

**۱. هغه جملې چې دې رفع په محل کې دي:**

**الف: هغه جمله چې خبر دې مبتدأ وي لکه: الاشجار، اغصانها مورقه، الاذن تعشق قبل العين احيانا.**

**ب:هغه جمله چې أنّ او د هغه دز اخواتو خبر وي لکه: إن الحياة همومها كثيرة. إن التلميذ يدرس.**

**ج: هغه جمله چې د مرفوع اسم صفت واقع شي. لکه: هذار أيُ يحل المشكلة.**

**د: هغه جمله چې دې بلې جملې په محل دې رفع کې وي تابع وي. لکه: محمود يجيد الخطابة ويذيع شعره.**

**۲. هغه جملې چې په محل دې نصب کې دي:**

**الف: هغه جمله چې د کان او د هغه د اخواتو خبر وي. لکه: كان الرجل ثيابه نظيفة. ظلت الجيوش تحجب الرؤية.**

**ب: هغه جمله چې د مفعول به واقع شي. لکه: قال التلميذ « نامجد».**

**ج: هغه جمله چې دې منصوب اسم صفت واقع شي. لکه:قرأت قصه خوادثها خيالية: سمعت طيور اتغرد.**

**د: هغه جمه چې حال واقع شي: ننتصر علي العدوو نحن يد واحدة. عادت الجيوش تظفر بالنصر.**

**هـــ: هغه جمله چې بلې جملې په محل دې نصب کې دې تابع واقع شي اعامل صديقا اخلاقه طيبة و عاداته حميدة.**

**۳. هغه جملې چې د جر په محل کې دی:**

**الف: هغه جمله چې مضاف اليه واقع شي. لکه: ذهبت الى حيث تقيمُ.**

**ب: هغه جمله چې دې مجرور اسم صفت واقع شي. لکه:**

ج: هغه جمله چې په محل کې واقع شوی جملې تابع وي. لکه: عجبت لصديق يستمع لصاحبه و تحرکه اشاراته.

۴. هغه جلمې چې په محل دې جزم کې دي:

الف: د شرط د جواب جمله چې له فاء سره مقتر نه وي. لکه: إن تعمل الجميل فانت مشکور.

ب: هغه جمله چې په محل دې جزم کې د واقع شوی جملې تابع وي. لکه: إن تنافع فأنت الکريم و هذا أملنا.

يادونه:

کله چې جمله دمفرد اسم پر ځای واقع شوی په محل دې اعراب کې ندی چې دا اوه ډوله دی.

١. کله چې جمله دکلام په سر کې او يا له ماقبل څخه جلا وي. لکه: لا تکذب إن الکذب مکروه.

٢. هغه جمله چې د موصول صله وي. لکه: جاء الذی کتب.

٣. هغه جمله چې دې شرط غير جازم جواب وي. لکه: لولا الهواء ما عاش کائن حی.

۴. هغه جمله چې دې جازم شرط جواب وي او مقترن له فاء سره نوی. لکه: کيف تعامل الناس يعاملوک.

۵. اعتراضيه جمله. لکه: کان رحمة الله قدرة حسنة.

٦. ( مفسره جمله ( هغه جمله چې خپل ماقبل توضيح ) لکه: نظرت إليه شذراً ای احتقرقه.

٧. هغه جمله چې دې داسې جملې تابع وي چې په محل دې اعراب کې نه وي. لکه: ذهبت الی المنزل و تناولت الطعام.

**په عربي ژبه کې نحوي طریقي ( اسالیب )**

**د شرط طریقه، د قسم طریقه، د مدح او ذم طریق، د تعجب طریقه، د اغراء او تحذیر طریقه، د اختصاص طریقه، دې استغاثې طریقه او دې استفهام طریقه. هغه طریقې دې چې په عربي ژبه کې ځانته ځانګړتیاوې لري چې په لنډه توګه په لاندې ډول بیانیږي.**

**د شرط طریقه:**

**دا طریقه د شرط له اداتو او دوو جملو اداة یو له بل سره یوځای کړئ جوړیږي چې لومړی جمله د دوهمې جملې لپاره شرط کیږي. لکه: من یحترم الناس یحترموه.**

**۱. د شرط ادوات:**

**الف: هغه ادوات چې دوه فعلونه مجزوم ګرځوي عبارت دې له. إن ـــ من ـــ ما ـــ مهما ـــ متی ـــ أیان ـــ أین ـــ أینما ـــ انی ـــ حیثما ـــ کیفما ـــ أی.**
**ب: هغه ادوات چې ( جزم ) نکوي. لو ـــ لولا ـــ لوما ( حروف ) إذا ـــ لما ـــ کلما ـــ ( ظروف ).**

**د شرط د جواب اقتران په فاء:**

**د شرط د جواب اقتران ( پیوستون ) له فاء سره واجب دی کله چې جواب له لاندې جملو څخه جوړ شوی وي.**

**الف: اسمیه جمله.**

**ب: فعلیه طلبیه جمله.**

**ج: هغه فعلیه جمله چې فعل یې جامد وي.**

**د: هغه فعلیه جمله چې په لن ـــ ما ـــ قد ـــ سین ـــ او سوف مسبوق وي.**
**یو له هغه طریقو د تأکید څخه دی چې له اداة قسم، مقسم به او جواب دې قسم څخه جوړ شوی ده. و الله إن فاعل الخیر لمحبوب.**

د قسم ادوات:

واو ـــ باء ـــ تاء ـــ ( چې دې جر حروف هم دي )

المقسم به:

دې جلاله ( الله لفظ او نور لفظونه ـــ حقک ـــ حیاتک.

د قسم جواب:

د قسم جواب کیدای شي اسمیه جمله یا فعلیه جمله وي.

که چیرې جواب دې قسم اسمیه وي واجب دی چې اِنّ اولام یا یواځې په اِنّ مؤکد وي.

او که چیرې قسم دې جواب فعله جمله وي او ماضي فعل واجب دی چې په لام او قد یا یواځې په قد مؤکد وي.

که چیرې مثبته مضارع وي تاکید یې په لام او نون دې تاکید واجب دی.

که چیرې جواب د قسم منفي وي نه تأکید کیږي.

۲. د مدح او ذم طریقې:

د اطریقه له فعل د مدح یا ذم، فاعل، مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم څخه جوړه شوی وي.

مدح او ذم دوه فعلونه لري یو یې نعم دوهم یې بئس.

دا دواړه فعلونه جامد دي او د عدد علامې له هغوی سره نه ملحق کیږي او د تأنیث د علامې یو ځای کیدل له هغوی سره جواز لري.

د نعم او بئس فاعل:

الف: له «ال» سره مقترن وي لکه: نعم الصدیق الکتاب.

ب: مضاف مقتران «ال» ته مضاف وي. بئس مصیر الاشرار السبحون.

ج: مستتر مبهم ضمیر چې نکره اسم د هغه ممیز وي. لکه: نعم خلقا الامانة.

د: موصول اسم ( من ـــ ما ) لکه: بئس من تصاحب المغتاب و بئس ما تفعل السرقه.

**مخصوص بالمدح اومخصوص بالذم:**

هغه اسم دې چې مقصود يې مدح يا ذم وي. دا اسم مرفوع مؤخره مبتدأ فعل او فاعل د هغه مقدم خبر کيږي همدا ډول جائز دی چې مخصوص د محذوف مبتدأ خبر وي.

يادونه: حبذل او لا حبذا دې نعم او بئس په مانا استعماليږي.

**۴. د تعجب طريقه ( اسلوب ):**

هغه طريقه ده چې له يو شي نه د ډار يا ډير لوړ ښودل د يوه صفت د يو شي کارول کيږي. لکه: ما أجمل.

**د تعجب دوه صيغې:**

ما أفعله ـــ افعل به: دا دواړه صيغې يواځې له ثلاثې تام او متصرف معلوم او مثبت فعل څخه جوړيږي. پدې شرط چې نوم وړی فعل. په لون او عيب دلالت ونکړي. يا په بل عبارت له ياد شوی فعل څخه صفت پر وزن دې هغه افعل چې مؤنث يې فعلاء وي نوي استعمال شوی.

کله چې فعل تعجب ترې هدف وي د پورتينو صفاتو او شرطونو در ليدونکی نوي. تعجب په «ما اشد» يا «شدّ» «به» يا نور هغه الفاظ چې له ځای سره مناسب وي تر سره کيږي پدې ډول چې صريح مصدر يا مسؤل له هغه فعل څخه چې تعجب د هغه مقصود دی وروسته له «ما اشد» يا «اشدد به» د مفعول به په حيث ذکر کيږي او هغه اسم ته چې تعجب يې په ځای «ما اشد سواد الليل» ويل کيږي.

او که له انتصار څخه تعجب وکړو نو وايې.

ما اروع أن ننتصر. او که چيرې له منفي فعل څخه تعجب جوړ کړو نو وايو. ما اقبح أن لا يقال الحق.

له جامد فعل څخه ( عيسى ـــ ليس ـــ نعم ـــ اوبئس ) څخه تعجب نه جوړيږي.

د دا ډول تعجب اعراب په «ما أجمل السماء» مثال کې. مانکره مبني په محل د رفع مبتدأء.

أجمل: ماضي فعل او فاعل يې مستتر ضمير چې ( ما ) ته راجع دی.

السماء: مفعول به منصوب.

أجمل بالسماء: أجمل ماضی فعل د امر په ډول. بالسماء: با زائده. المساء: مجرور لفظ او مرفوع حکماً فاعل.

۵. د اغراء او تحذير طريقه ( اسلوب )

أغراء: عبارت له هڅولو يا ترغيب دې مخاطب دی په يوه نيک کار ترڅو هغه وکړي. لکه: الصدق الصدق.

تحذير: عبارت له پوهولو يا متوجه کولو دې مخاطب دې يوه بد کار ته ترڅو هغه ونکړي. لکه: اياک و الکذب. په پورتنيو مثالونو کې صدق ته ( مغری به ) اوکذب ته د محذر منه ) وايې.

او اعراب دې هر يوه بنا پر مفعول به دمحذوف فعل لپاره نصب دی.

د اغراء او تحذير صورتونه:

الف: مغری به يا محذر منه يواځې ( مفرد ) ذکر کيږي. لکه: الصدق.

ب: مغری به يا محذر منه دې معطوف عليه ذکر شي. لکه: الصدق و الامانة.

تعذير څلورم شکل هم لري او هغه دا چې محذر منه وروسته له اياک څخه ذکر شي. لکه: إياک والسرقة.

٦. د اختصاص طريقه ( اسلوب ):

داسې يوه طريقه ده چې لومړی د متکلم ضمير ذکر کيږي وروسته له هغه څخه ظاهر اسم راوړل کيږي. ترڅو څرګند شي چې له ضمير څخه کوم کس مراد دی او يا په اعتبار دې کوم صفت متکلم غوښتی چې ځان يا ځانونه ذکر کړي. لکه: نحن المعلمين نبذل غاية ما فی وسعنا أن نعلم أبناء بلادنا ما تنال به سعادة الدنيا والاخرة.

او هغه ظاهر اسم چې وروسته له ضمیر څخه ذکر شوی دی «مخصوص» په نامه یادیږي او داچې «مخصوص» د هغه فعل لپاره چې وجوبي محذوف وي مفعول به دی او همیشه منصوب وي.

۷. د استغاثې طریقه ( اسلوب )

دا یو له طریقو دې ندا څخه دی چې هدف یا مقصود له شدت څخه خلاصون دی. لکه: یالشرط للمسروق یا للشرط من السارق. دا طریقه له دریو ارکانو څخه جوړه شوی.

د استغاثې له ادواتو څخه ( یا ):

**مستغاث به:** هغه شخص یا شی چې له هغه څخه غوښتنه تر سره کیږي او تل مستغاث به مجرور په مفتوحه لام وي.

**مستغاث له:** شخص یا شی چې د هغه لپاره کمک غوښتل کیږي اومستغاث له مجرور په مکسوره لام یا په من وي.

یادونه:

دا طریقه د تعجب د ښودلو لپاره هم کارول کیږي. لکه: یاللعجب: پدې صورت کې مکسور لام او من چې په استغاثه راوړل کیږي ځای نلري.

۸. د استفهام طریقه ( اسلوب ):

د استفهام طریقه چې په یو شي د پوهه لپاره کارول کیږي. لکه: کیف حالک؟

د استفهام ادوات:

الف: د استفهام حروف:

هل: د هل پواسطه د یوه شي له واقع کیدلو څخه پوښتنه تر سره کیږي او جواب یې په «نعم» یا «لا» وی.

همزه: په دې حرف سوال د يو شي له تعيين څخه يا د يو شي له وقوع او عدم وقوع څخه پوښتنه تر سره کيږي په لومړی صورت کې ځواب په تعيين دې مستفهم عنه او په دوهم صورت کې ځواب په «نعم» او «لا» ورکول کيږي.

ب: د استفهام اسمونه عبارت دي له:

من ــ متى ــ اين ــ کم ــ کيف ت أى.

او ځواب د دې ادواتو په تعيين دې مستفهم عنه ورکول کيږي.

# لومړی باب

# صرفي میزان

د صرفو قواعد د عربي ژبي د کلمو جوونت او کوم تغیرات چه دي زیاتوالی یا کموالی لامل په کي راځي تخصیص ورکړ شوي.

څرنگه چه زیاتره عربي کلمي دري حرفي دي نو د حرفو علماءو د کلمو اصول ئي دري حروفو ته اعتبار وکړي. او د کلمو د ضبط او ثپت لپارهٔ یو نظام وضع کړي چه د هغه پواسطهٔ فا، عین او لام د کلمي (فعل) میزان کوي.

- په دي توگه ویلاي شو چه دي (شَکَرَ) کلمه پر وزن در فَعَلَ او دي (شرب) کلمه پر وزن دري فعل او د (کَرُمَ) پر وزن دي (فعُلَ) دي.
- او که چیري یوه کلمه څلور حرفي یا پنځه حرفي وي د څلورم یا پنځم حرف پمقابل کي (لام) مکرر گرځي. لکه:

د حرج: پر وزن دي فعلل او زَمَرُّد پر وزن در فعلُّلُ.

- او که چیري زیادت د اصولو د کلمي له وجه وي مقابل حرف ئي په میزان کي هم مکرر گرځي لکه: علّم پر وزن د فعَّل.
- او که چیري زیادت په عربي کلمه کي په یوه حرف د زیادت له حروفو څخه چه په (سألتموني ها) کي یو ځاي شوي په میزان کي د اصلي حروفو (فا — عین— او لام) په مقابل کي همدا ډول زائد حروف خپله اخرافه کیږي په کومو حرکاتو چه لري ئي په دي توگه ویلاي شو چه دي أحسن کلمه پر وزن دي (أفعل) دي شارک کلمه پر وزن د (فعل) او د استنکر کلمه پر وزن (استفعل) او د کاتب کلمه پر وزن دي (فاعل) او د محروم کلمه پر وزن مفعول او دی انتخاب کلمه پر وزن دی (افتعال) دي.

- کله چه یو حرف له موزون شویو کلمو څخه خذف شي په مقابل کي ئي له میزان څخه هم هغه حرف خذفیږي. نو ویلاي شو چه دي: (خذ) کلمه پر وزن دی (عُلْ) او د (فِ) کلمه چه فعل امر دی (وفي– یعني) څخه دي پر وزن (ع) دی په دي ډول عربي کلیمي په دری ډوله دي:

**اسم، فعل او حرف.**

په دي برخه کي د صرفو قواعد چه اسم او فعل له برخو سره تعلق لري د کتني لاندي نیسو.

ځکه چه حروف ټول جامد دي او د صرفو له قواعدو سره کوم تعلق نلري.

## دوهم باب

# اسم د صرفي قواعدو له حيثه

اسم د قواعدو له حيثه لاندي ډولونوته شامليږي:

۱. اسم د جوړښت له حيثه چه صحيح الاخر او غير صحيح الاخر دي.

۲. اسم د تعيين او عدم تعيين له حيثه چه نکري او معرفي ته ويشل شوي.

۳. اسم د نوع له حيثه چه مذکر او مؤنث ته ويشل شوي.

۴. اسم د عدد له حيثه چه مفرده تشنيي او جمع ته ويشل شوي.

۵. اسم د ترکيب له لحاظه چه جامد او مشتق ته ويشل شوي.

٦. اسم د تعخير له نظره.

۷. اسم د نسبت له حيثه.

# لومړی فصل

## اسم د جوړښت له حيثه

اسم د جوړښت له نظره صحيح الاخر او غير صحيح الاخر ته ويشل شوي.

غير صحيح الخر په درى ډوله دي: ١– مقصور، ٢– منقوس او ٣– محدود.

**١– الاسم المقصور:**

- عبارت له هغه معرب اسم څخه دي چه اخر حرف ئي اصلي او لازمي الف وي.
  له لازمي الف څخه مراد دا دي چه له هغه څخه استفناء غير ممكن وي. لكه:
  فتي – هدي – عصا – ذكري – ملسهي – مصىڧي او مستدعي.

اعرابي حركتونه (ضمه، فتحه، او كسره) د مقصور په اخركي مقدر كيږي.

لكه: جاء الفتي.

الفتي: مرفوع په ضمه (مقدره) په الف زكر چه په الف تلفى كول گران دي او يواځي سكون مني.

د خلت الملهي. اعلهي: منصوب په فتحه (مقدره) په الف.

(اتكأت علي العصا، العصا مجرور او علامه د جرئي مقدره كسره په الف دى.

- كله چه مقصور اسم منون شي الف ئي په خطه كي پاقي پاتي كيږي خو په تلفظ كي حذفيږي كه مرفوع، منصوب، يا مجرور وي. لكه: جاء فتحاً – دخلت ملهيً – اتكُات علي العصاً.

**٢– الاسم المنقوص:**

منقوص هر هغه معدب اسم دي چه آخر خرف ئي لازمي او اصلي الف وي او ماقبل يې مكسور وي. لكه: المحامى – الهادى – الزاعى – القاضى – الوادى – الداعي.

د منقوص له تعریف څخه داسي څرګندیږي چه ظبیٌ او دده په ډول نوري کلیمي منقوص ندي زکه چه ماقبل د داسي رتم مکسور ندي. همدا ډول رسمونه لکه: عربی – مصری او افغاني منقوص ندي زکه چه د دوي (یاء) د آخر اصلي (جزٔ د اسم) ندي.

- د منقوص اسم اعراب په حالت دی رفع او جرگی په ضمه او مقدره کسره باندي دي ځکه چه تلفی کول په مضموم یاء او مکسوره ثقل راوړي. خو د منقوص د نصب علامه چه فتحه دی ملفوظ دي نه مقدره.

لکه: جاء المحامي. المحامي: مرفوع په مقدره ضمه پر یا. قابلت القاضی: منصوب په ظاهره فتحه.

- کله چه منقوص اسم منون شي د رفع او جر په حالت کي یاء خذفیږي. او د نصب په حالت یا نه حذفیږي. لکه: محام – سرت في وادٍ قابلت – قاضیا.

یادونه:

د منقوص اسم او هغه غاسم ه په آخر کي ئي مشدّده یاء وي او هغه اسم چه مخکي له یاء د آخر څخهٔ صحیح صرف ساکن وي دا دي چه منقوصه یاء له تنوین سره کوم منافات نلري ځکه چه دا دواړه یاء د ماقبل د سکون له وجه، قوت آخیستي دي. لکه هذالمنزل مبني من الطوب جاء ني مصری – أجبنی و ثوب ظبيٌّ.

۳– الاسم المحدود:

محدود اسم هغه اسم دي چه وروستي حرف ئي همزه او ماقبل اخرئي الف زائده وي لکه: انثاء – اپتداء – سماء – کساء – خضراء – شعراء – عظماء.

د محدود اسم همزه په څلور ډوله دی:

الف: اصلي لکه: انثاء – ابتداء له أنثأ او ابتدأ څخه.

ب: منقلبه له واو او یاء څخه. لکه: بناء له بعبني څخه، اسماء له سیمو څخه.

ج: زائده د تانیث لپاره لکه: صحراء – خضراء – عقرباء – عاشوراء.

د: زائده د جمع لپاره. لکه: عظماء – شعراء – اوقیاء – اؤساء – ادپاء.

- هغه محدود اسم چه همزۀ د تانیث لپاره یا حمع لپاره وي ممنوع من الصرف یا غیر منصرف دي تنوین او کسره نه اخلي. لکه قابلت شعراء في صحراء حدباء.
- او هغه محدود اسم چه همزۀ اصلي وي لکه: ابتداء یا منقلبه له (یاء) او (واو) څخه وي لکه: بناء او سماء منوّن ګرځي. خو الف د نصب علامه ددي ډول اسمونو په اخر کي نه زیاتیږي ځکه چه جائز ندي چه همزه د دوؤ الفو ترمنځ واقع شي لکه: تىپیق هذه التعلیمات ابتدأ من الساعة السادسة مساءً.

صحیح الاخر اسم:

صحیح الاخر اسم هغه اسم دي چه مقصور، منقوص او محدود نوي لکه: رجل – حجر – ظبي – دلو.

# دوهم فصل

## اسم د تعیین او نه تعیین له حیثه

**اسم د تعیین له حیثه په دوه ډوله دي. ۱– نکره او معرفه.**

**نکره اسم: هغه اسم دی چې په غیر معین دلالت کوي. یا په بله توګه نکره هغه اسم دی چې په یوه نوع کې په شائع فرد دلالت کوي.**

**لکه: انسان ـــ امید ـــ ذهره.**

**معرفه اسم:**

**هغه اسم دی چې په یوه معین شي دلالت کوي لکه: محمود ـــ الانسان ـــ هذاالاسد ـــ ذهرة البنفیج.**

**د معرفې ډولونه اوه دي:**

**۱. ضمیر**
**۲. علم**
**۳. د اشارې اسم**
**۴. موصول اسم**
**۵. معرف په «ال»**
**٦. مضاف الی المعرفة**
**۷. معینه منادي**

**چې په لاندې ډول د هغوی لنډ او مختصر بیان راځي.**

**۱. ضمیر معرفه او مبني اسم دی چې په متکلم، مخاطب او غائب دلالت کوي، لکه: انا ـــ نحن ـــ انت ـــ هو او چې دې مبني په برخه کې ضمیر.**

۲. هغه اسم دی چې په یوه معین شخص، معین مکان ( ځای ) یا معین شي د وضع پر اساس ( بنسټ ) دلالت وکړي، لکه: محمد ــ عائة ــ المغرب ــ لبنان ــ مکه ــ دمشق ــ النیل.

**علم په دوه ډوله دی:**

الف: کنیه: عبارت له هغه اضافي مرکب څخ ده چې په اب، ام یا ابن سره شروع شوی وي. لکه: ( ابوبکر ــ ام کلثوم ــ ابن سینا.

ب: لقب: هغه اسم دی چې په یوه صفت دې خپل مسمی دلالت وکړي. لکه: المأمون ــ المثنی ــ الحافظ.

ج: اسم: هغه علم دی چې نه کنیه او نه لقب وي او په لاندې ډول وي.

- ❖ مفرد یوه کلمه. لکه: علی ــ مریم ــ تونس.
- ❖ اضافی مرکب. لکه: عبدالوهاب ــ عبدالغفار.
- ❖ مزجي مرکب. لکه: بعلبک ــ نیویارک.

**کتنه:**

**علم د وضع له حیثه:**

علم د وضع له حیثه مرتجل او منقول ته ویشل شوی.

- ❖ مرتجل: هغه علم اسم دی چې له علمیت څخه د مخه په بل مورد کې نوي مستعمل شوی. لکه: سعاد ــ یوسف ــ زینب ــ دمشق ــ بغداد ــ معاویة.
- ❖ منقول: هغه علم ته ویل کیږي چې غیر له علمیت څخه بلې مانا ته هم استعمال شوی وي او وروسته بیا د علمیت مانا ته رانقل شوی وي نو ویلای شو چې دا ډول علم یا له صفت څخه رانقل شوی وي. لکه: حسن ــ محمود ــ کریم ــ شریف ــ انور ــ اسعد ــ شاویه ــ المنصور ــ القاهرة.

❖ يا له مصدر څخه رانقل شوى وي. لکه: توفيق ـــ اخلاص ـــ اکرام ـــ اعتدال ـــ نجاة وفاء ـــ دلال ـــ هدى ـــ نجوى.

❖ يا له اسم جنس څخه رانقل شوى وي. لکه: اسد ـــ اسامه ـــ وردة ـــ زمردة ـــ فيروز.

❖ يا له فعل څخه نقل شوى وي. لکه: احمد ـــ يزيد ـــ عزالدين ـــ ( عز ـــ د امر فعل دى ).

ب: کله چې دي «ابن» کلمه د دوو اسمونو چې علم وي واقع شي د هغه الف حذفيږي. لکه: عمربن الخطاب ـــ جماالدين بن مالک. او کله چې دې د دوو اسمونو ترمنځ نوي واقع شوى ليکل کيږي. لکه: قرأت الفية ابن مالک.

۳. دې اشارې اسم:

هغه معرفه اسم دى چې په داسې يوه شي دلالت کوي چې دې اشارې پواسطه تعين شوي وي. لکه: هذا ـــ هذه هؤلاء ـــ ذلک ـــ تلک ـــ اؤلئک ـــ هنالک.

۴. موصول اسم: هغه اسم دى چې دې صله پواسطه په يوه معين شي دلالت کوي او صله د موصول جمله وي چې په يوه ضمير چې موصول ته عائد وي مشتمل وي. لکه: الذي ـــ التى ـــ الذين ـــ ما اومن.

۵. معرف په «ال»:

الف: هر هغه نکره اسم چې په اول کې يې لام دې تعريف زيات شي معرف په «ال» نومول کيږي. لکه: الرجل ـــ الحديقة ـــ السيف القلم.

ب: حروف په دې اعتبار چې «ال» مخکې له کوم حرف څخه تلفظ کيږي او په کوم حرف کې ادغام کيږي په دوه ډوله دى.

**قمري حروف او شمسي حروف:**

**الف: قمري حروف: هغه حروف دي چې کله «ال» له دوی څخه مخکې راشي «ال» تلفظ کیږي او ( ۱۴ ) حروف دي.**

**أب ــ ج ــ ح ــ خ ــ ع ــ غ ــ ف ــ ق ــ ک ــ م ــ هــ ــ و ــ ی. کله چې «ال» په داسې اسم داخل شي چې لومړی حرف یو له پورتنیو څوارلسو حروفو څخه وي تلفظ په «ال» ساکن او وروسته په لومړي حرف دکلیمې چه کوم حرکت لري تلفظ کیږي. لکه:**

**اَالأرض ــ البر ــ الجمل ــ الحاجب ــ الخطیئه ــ العصاء ــ الغرفة ــ الفتی ــ القصر ــ الکراسة ــ المدینه ــ الهجرة ــ الولد ــ الیسار.**

**ب: شمسي حروف: هم څوارلس دي او کله چې د «ال» په داسې حرف کې ادغام کیږي او په نطق کې نه څرګندیږي.**

**شمسي حروف دادي: ت ــ ث ــ د ــ ذ ــ ر ــ ز ــ س ــ ش ــ ص ــ ض ــ ط ــ ظ ــ ل ــ ن.**

**د لام د ادغام له وجهې په دې حروفو کې لومړی حرف مشدّد ګرځي نو مُشدد تلفظ کیږي. لکه: التّلمیذ ــ الثلج ــ الدوحه ــ الذئب ــ الزجاجه ــ السهم ــ الشمس ــ الصحراء ــ الغباب ــ الطاحونه ــ الضلل ــ اللسان ــ النافذة.**

**یادونه:**

**څرنګه چې خبره له قمري او شمسي حروفو څخه راغله نو له قمري او شمسي میاشتو څخه یادونه هم بیځایه نده یو قمري کال دولس مکمل څرخیدل د سپوږمی د ځمکې په مدار دي چې اساس دې هجري تاریخ تقویم همدا دوورونه دي.**

خو شمسي کال د لمريز کله چې لمر له ( ۱۲ ) برجونو په خپل حرکت و څرخيږي د ميلادي تقويم اساس جوړ وي.

**د قمري مياشتي نومونه دا دي:**

**الحمرم ــ صفر ــ ربيع الأول ــ ربيع الأخر ــ جمادى الولى ــ جمادى الاخر ــ رجب ــ شعبان ــ رمضان ــ شوال ــ ذولقعده ــ ذوالحجه. شمسي مياشتې په لاندې ډول دي. يناير ــ فبراکر ــ مارس ــ إبويل ــ مايو ــ يونيو ــ پوليو ــ اغطس ــ سبتمبر ــ اکتوبر ــ نومبر ــ دسمبر.**

٦. **معرفې ته مضاف:** هغه نکره اسم چې معرفې ته مضاف شي معرفه ګرځي. لکه: کتاب التاريخ ( کتاب ) نکره ده د اضافت له وجهې معرفه شوى.

٧. **معينه منادي:** هر نکره چې د نداء کونکي مقصود ګرځي معرفه ګرځي. يا رجل.

# دريم فصل

# اسم د نوع له نظره

اسم د نوع له نظره په دوه ډوله دی. مذکر او مونث.

**مذکر اسم:** هغه اسم دی چې د انسانانو او حیواناتو په نارینه ؤ دلالت کوي. لکه: أب رجل ــ تلمیذ ــ اسد ــ حصان ــ عصفور. او کوم اسماء د شیانو چې ژوند نلري څه یې مذکر حساب شوی. لکه: قمر ــ سیف ــ قلم ــ کتاب ــ باب.

**مؤنث اسم:** هغه اسم دی چې په ( ناڅود زنانه ؤ ) د انسانانو او حیواناتو دلالت کوي چې هغوی ته حقیقي مؤنث ویل کیږي. لکه: ام ــ أخت ــ إمرأة ــ فتاة ــ أفعى ــ أتان. خو ځینې یې روحه شیان په اتفاق سره مؤنث بلل شوی چې د مجازي مؤنث په نامه یادیږي. لکه: صورة ــ کرة ــ قمه ــ صحراء ــ دار.

**د تانیث علامې ( نښې ):**

**مؤنث اسم درې علامې لري:**

١. **د تانیث تاء:** چې په مربطه تاء باندې یادیږي او له نورو علامو د تانیث څخه زیاته کارول کیږي چې په لاندې شکلونو وي.

الف: په خپل اصلي صورت په ځینې اسماؤ کې که په خپل ترکیب کې وي. لکه: فاطمه ــ منضدة ــ حدیقه ت دولة.

ب: دې زائدي تاء شکل په هغه صفاتو کې چې د مذکر او مؤنث تر منځ د توپیر لامله راوړل شوی ده. لکه: سلم ــ سلمة ــ قائم ــ قائمة ــ جمیل ــ جمیلة.

داسې صفتونه شته دي چې د مذکر او مؤنث لپاره په یوه ډول کارول کیږي بدون له تاء څخه.

❖ هغه صفت چې پر وزن دې ( فعول ) او په مانا دې فاعل وي. لکه: رجل صبور، شکرر، و إمرأة صبور و شکور.

❖ هغه صفت چې په وزن د ( فعیل ) په مانا دې مفعول وي. لکه: رجل جریح ـــ قتیل ـــ و امرأة جریح و قتیل.

❖ هغه صفتونه چې یواځې په ( اناثو ) منطبق کیږي نه پر ذکورو. لکه: حامل مر ضع.

ج: بعضې اسمونه چې صفت ندي زائده تاء د مذکر او مؤنث تر منځ د فرق لپاره راوړل کیږي خو دا ډول استعمال کم دی.

لکه: انسان ـــ انسانة ـــ امرؤ ـــ إمرأة ـــ ابن ـــ إبنة.

د: هغه اسمونه چې بې له تاء څخه په جنس دلالت کوي. لکه: حمام ـــ دجاج ـــ بقر ـــ جراد ـــ برتقال ـــ مطبخ ـــ صخر کله چې په آخر د هغوی تاء زیاته شي پر واحد یا واحد د خپل جنس باندې دلالت کوي او د مذکر او مؤنث لپاره یو ډول استعمال لري. لکه: حمامة ـــ دجاجة ـــ بقره ـــ جراده ـــ برتقاله ـــ مطبخه ـــ صخرة.

په عام ډول د دې اسمونو جمع خپل اسم جنس وي. داسې ویل کیږي. الحمام جنس طِر، واحد او دا حدته حمامة و جمعه حمام.

التفاح نوع من الثمر واحده تفاحه ـــ و جمعه تفاح.

۲. **د تانیث مقصوده الف:**

مقصوده الف په لاندې حالاتو کې د تانیث علامه وي:

الف: هغه مؤنث صفتونه چې مذکر یې پر وزن د «فعلان» وی نو مؤنث یې پر وزن دې «فعلی» راځي. لکه: عطشان، عطشي ـــ جوعان، جوعي ـــ کسلان، کسلي: هغه صفت چې په وزن دې «أفعل» راځي.

ب: اکبر ــ کبری ــ اعظم ــ عظمی ــ اصغر ــ صغری ــ اعلی ــ علیا ــ افضل ــ فضلی.

ج: هغه مصادر چې په الف مقصوده منتهي شوی وي. لکه: دعوي ــ نجوی ــ ذکری ــ بشری ــ فتوی.

د: اسماء یا هغه صفتونه چې په مقصوده د الف تأنیث د هغوی لازمي جز وي. لکه: أنثی ــ أفعی ــ حبلی.

له یاد شوو ځایونو پرته هغه اسماء او صفات چې په الف مقصوده منتها شوی وي مؤنث نه ګڼل کیږي. لکه: مصطفی ــ مستبقی ــ مثنی ــ جرحی ــ مرضی.

۳. **د تانیث ممدوده الف: الف التانیث المدودة:**

ممدوده الف په لاندې ځایونو کې د تانیث علامه وي.

الف: هغه مؤنث صفتونه چې مذکر یې پر وزن دې «أفعل» په څیر وي اسم تفصیل کې راځي. لکه: أحمر ــ حمراء ــ اعراج ــ عرجاء ــ اعمی ــ عمیای.

ب: هغه اسماء یا صفات چې په وزن الف ممدوده زائده منتهی شوي وي خو د مذکر د تانیث لپاره یې د هغه اسم یا صفت له لفظ څخه نوي استعمال شوی. لکه: صحراء ــ حسناء ــ عقرباء ــ عاشوراء ــ په دې باید پوه شو کوم ممدوده الف چې همزه اصلي وي. لکه: ابتداء یا له واو او یاء څخه منقلب وي. لکه: بناء ــ ائ صفا ــ یا زائده د جمع لپاره وي. لکه: شعراء ــ عظماء ــ خلفاء. دا ډول ممدوده الف د تانیث لپاره نه وي.

**یادونه:**

۱. داسې اسمونه هم شته چې علاوه پر دې چې دې هغو په اخر کې د تانیث علامه ملحق شوي خو بیا هم په مذکر دلالت کوي. لکه: معاویة ــ طلحة ــ خمزة.

۲. داسې اسمونه شته چې علامه د تانيث نلري خو په مؤنث دلالت کوي. لکه: زينب ـــ مريم ـــ هند ـــ اتان ( حقيقي مؤنث ) أذن ـــ ارض ـــ فعى ـــ بئر ـــ حرب ـــ دار ـــ رجل ـــ رَحِم ـــ فخذ ـــ قَدَم ـــ کاس ـــ کف ـــ ناب ـــ نار ـــ يد.

۳. داسې نور اسمونه شته دي چې دې تانيث علامه نه لري خو جائز دی چې د مؤنث په ډول استعمال شي. لکه: څرنګه چې ممکن مذکر استعمال شي. ابط ـــ صح ـــ ندى ـــ حال ـــ درع ـــ سبيل ـــ سکين ـــ سلاح ـــ سماء ـــ سوق ـــ طريق ـــ عنق ـــ کبد ـــ متن. د مثال په ډول. جائز وي چې اويل شي. السوق الرولي يا اسوق الدولية. هذالطريق فسيح يا هذ الطريق فسيحة ـــ السماء ارزق ائ اسماء زرقاء.

# څلورم فصل

## اسم د مسمی د عدد له حیثه

په دې اعتبار اسم، مفرد، تثنيي او جمع ته ويشل شوي.

**مفرد اسم:** مفرد اسم هغه اسم ته وايي چې دلالت پر واحد يا واحدة باندې کوي.

لکه: علي ـــ غلام ـــ حصان ـــ فتاة ـــ مائدة.

**مثنی اسم:**

**د مثنی اسم جوړښت:**

مثنی هغه اسم دی چې دې الف او نون په زيادت ( رفع په حالت کي ) او په زيادت دې ياء او نون ( په حالت د نصب او جر کې ) په مفرد اسم کې او په دوو د مفرد په جنس دلالت وکړي. د مثنی له ياء څخه د مخه يا ماقبل د نصب او جر په حالت کې مفتوح او نون يې په هر حالت کې مکسور وي. لکه: حفرالمهندسان ـــ ذرت دولتين ـــ مررت بسيرتين.

تشفيه يوائې له مفرد معرب غير مرکب اسم څخه جوړيږي نو په دې ډول خپله مثنی او جمع نشي کيدای همدا ډول مبنی اسم. لکه: د شرط اسمونه او يا د استفهام اسمونو او د هغوی په شان نور اسمونه مثنی نشي راتلای.

❖ **د مقصور، منقوص، او ممدود تثنيه:**

**الف:** کله چې د مقصور اسم دې تثنيه د جوړولو لپاره اراده وشي نو بايد الف يې وپيژنو.

❖ که چيرې د مثنی الف دريم ځای که وي په تثنيه کې خپل اصل ته چې ( واو ) يا ( ياء ) دی ګرځول کيږي. لکه: عصا: عصوان او عصوين ـــ فتی: فيتان، فتيين.

❖ که چیرې د مثنی الف څلورم وي یا له هغه څخه لوړ، الف، په یاء بدلیږي. لکه: مستشفی: مستشفیان یا مستشفیین.

ب: کله چې منقوص اسم څخه تثنیه جوړه کړو که چیرې د هغه «یاء» حذف شوي وي هغه بیرته را وړو. لکه: محام: محامیان ـــ محامیین.

ج: کله چې د ممدود اسم مثنی جوړه کوړ نو همزې ته ګورو که چیرې اصلي وي په خپل حال پاتې کیږي. لکه: فضاء: فضاءان ـــ فضائین. او که چیرې همزه له «یاء» او یا «واو» څخه منقلبه وي نو جائز دی چې په خپل حال پاتې شي یا په واو بدله شي. لکه: بناء: بناءان ـــ یا بناوان ( همزه په اصل کې یاء دی له ). سماء: سماءان یا سماوان ( همزه په اصل کې واو ده له سما، بسمو څخه )

**په اضافة کې دې مثنی د نون حذفول:**

کله چې مثنی مضاف وي نون یې حذفیږي. لکه: حَفَصدرسا اللغة العربیة ( د مدرسان ) نون حذف شوی. او لکه: تقع سروبي بین مدینتي کابل و جلال اباد. نون د ( مدینتین ) د اضافت پواسطه حذف شوی.

**هغه الفاظ چې مثنی سره ملحق دي په اعراب کې:**

پنځه لفظونه په اعراب کې له مثنی سره ملحق دي. اثنان ـــ اثنتان ـــ ثنتان ـــ کلا ـــ کلتا ( کلا او کلتا یواځې چې ضمیر ته مضاف شوی وي ) مثنی ملحق دی.

اصل مثنی هغه ده چې په مفرد اسم که الف او نون یا یاء او نون زیات شوی وي. تر څو په دوو افرادو دلالت وکړي.

څرنګه چې پورتنې نوموړي الفاظ د دوی اعراب لکه مثنی دی لدې امله د مثنی په اعراب ملحق ګڼل شوی ده. او لکه د مثنی په شان علامه دې رفع کې په الف او علامه دې نصب او جر يې پر ياء دی.

**په لنډه توګه د كلا او كلتا د استعمال شرح:**

کلا د ( مذکري تثنيې لپاره ) او كلتا ( مؤنثې تثنيې لپاره ) دوه اسمونه دي چې تل مضاف استعماليږي يعنې بې له اضافت څخه نه استعماليږي. کله چې مضاف شي نو يواځې د مثنی ضمير يا مثنی معرفې چې اسم ظاهر وي مضاف کيږي.

کله چې مثنی ضمير ته مضاف وي نو تاکيد واقع کيږي او د هر يوه اعراب لکه د مثنی داسې دی. لکه: جاء الرجلان کلاهما. کلا: تاکيد مرفوع په الف. رأيت إمعرتين. كلتا: تاکيد منصوب په ياء.

کله چې مثنی معرفې ته مضاف شي په اعراب کې. لکه: دې مقصور اسم په ډول ګرځي يعنې په مقدره ضمه مرفوع په الف، او په مقدره فتحه او مقدره کسره منصوب او مجرور په الف ګرځي. لکه: کلا الرجلين مجتهدان ــ كلتا السيديتن مجتهدتان ( مرفوع ) رأيت کلا الرجلين يا كلتا السيديتن رحالة النصب. مررت بكلا الرجلين يا كلتا السيدتين ( حالة جر ).

**يادونه:**

د کلا او كلتا خبر او هغه ضمير چې هر يوه ته راجع وي جائز دی چې مفرد وي يا مثنی. لکه: كلتاالجنتين اتت اكلها ( ضمير مفرد ) ممکن دی. د افرادو په صورت کې دواړه وي. اوويل شوي چې د افراد په صورت کې دې لفظ او د مطابقت په صورت کې د مانا رعايت شوی دی. و الله و اعلم.

**جمع: هغه لفظ دی چې په سبب د تغيير په مفرد کې پر دوو او يا زيات له دوو څخه دلالت وکړي. لکه: مهندسون ــ مدرسات ــ أنهار.**

**جمع په درې ډوله ده. جمع مذکره سالمه ــ جمع مؤنثه سالمه او جمع تکسير.**

**لومړی: جمع مذکره سالمه:**

**۱. د مذکرې جمع سالمي جوړښت:**

**مذکره جمع سالمه د واو او نون په زياتوالي د رفع په حالت کې او د يا او نون په زياتوالي د نصب او جر په حالت کې جوړيږي. نصب اوجر په حالت کې ماقبل دې ياء مجرور او درفع په حالت کې مفتوح وي. لکه: حفر الفنانون ــ إن الله يحب المحسنين.**

**۲. هغه اسمونه او صفات چې له هغوی څخه مذکره سالمه جوړيږي. هر اسم يا صفت څخه نشي کيدای چې جمع مذکره سالمه جوړه شي يواځې له هغو اسمونو او صفتونو څخه جمع مذکره سالمه جوړيدای شي چې لاندې شرطونه ولري.**

- **اسم: په هغه صورت کې دا ډول جمع کيدای شي چې علم دې عاقل او مذکر وي او له تاء او ترکيب څخه خالي وي. لکه: علي ــ عليون ــ محمد ــ محمدون ــ عامر ــ عامرون. په دې توګه دغه اسماء. لکه: رجل ــ غلام. پدې صيغه نشي جمع کيدلای ځکه چې علم ندی او همدا ډول. زينب ــ هند په دې صيغه نشي جمع کيدلای ځکه چې مؤنث علم دی همدا ډول: حمزه، معاويه د «تاء» په درلودلو سره نشي کولای چې دا ډول جمع شي. سببونه د ترکيب لامله نشي کولای چې په دې صيغه جمع شي.**
- **صفت: د صفت د جمع کيدلو شرط پدې وزن دا دی چې صفت مذکر، عاقل او له تاء څخه خالي وي او دې افعل له هغه باب څخه چې مؤنث يې پر وزن دې فعلاء وي يا نه وي.**

همدا ډول دې فعلان له باب څخه چې مؤنث يې فعلي دی نوي. هغه مثالونه چې پورتني شرطونه لري.

مخلص ــ مخلصون ــ نائم ــ نائمونه ــ افغاني ــ افغانيون ــ مسلم ــ مسلمون ــ مجتهد ــ مجتهدون.

لدې کبله هغه صفت. لکه: مرضع په دې وزن نه جمع کيږي ځکه چې او نه داسې صفتونه. لکه: شامخ او فسيج ځکه چې د غير عاقل لپاره دی او نه لکه: اخضر او احمر ځکه چې پر وزن دې افعل دی چې مؤنث يې پر وزن د فعلاء دی. همدا ډول د اسې صفتونه لکه عطشان او شعبان پدې وزن نه جمع کيږي ځکه داسې فعلان دي چې مؤنث يې فعلي دی.

۳. د مقصور، منقوص او ممدود اسم مذکره جمع سالمه:

الف: کله چې مقصور اسم څخه مذکره جمع سالمه جوړه کړو الف يې وي او فتحه چې واو څڅه د مخه دی باقي پاتې کيږي. لکه: اعلی ــ اعلون : اعلين ــ مصطفی مصطفی: مصطفون ــ مصطفين.

ب: کله چې له منقوص اسم څخه په دې وزن جمع جوړه کوو يا يې حذفوو ماقبل دې واو ته ضمه او ماقبل د ياء کسره ورکوو. لکه: الباقي: الباقون ت الباقين ــ المحامی: المحامون ــ المحامين.

ج: کله چې ممدود اسم جمع مذکري سالمې صيغه ته جمع شي نو لومړی هغه شيوه چې په تثنيه کې کارول شوی تعيين شي. لکه: د فاء: دفاءون ( چې همزه اصلي دی ) بناء: بناءئن يا بنائئن « همزه له ياء څخه منقلبه دی )

۴. په ضافة کې که دې مذکرې جمع سالمې د نون حذف:

کله جمع مذکره سالمه مضاف وي نو د هغه نون حذفیږي. لکه: حضر ــ مدرسواللغات ــ قابلت مهندسی الطرق والکباري.

۵. هغه الفاظ چې په اعراب کې له جمع مذکرې سالمې سره ملحق وی:

أولول ( اصحاب ) عشرون ــ ثلاثون تر تسعون پورې ــ بنون ــ اهلون ــ سنون ــ عالمون ــ ارضون.

پوتني اسمونه اگر که د جمع مذکرې سالمې د جوړښت د شرطونو پوره کونکی ندی خو بیا هم د دې لپاره چې واو، مرفوع او په یاء مجرور او منصوب گرځي په اعراب کې د جمع مذکرې سالمې له ملحقاتو څخه گڼل شوی. لکه: حضر اربعون رجلا ــ الحمدلله رب العالمین ــ المال والبنون زینة الحیاة الدنیا.

**دوهم جمع مؤنثه سالمه:**

۱. د جمع مؤنثې سالمې جوړښت:

مؤنثه جمع سالمه په مفرد کې دې الف او تاء په زیاتولو جوړیږي. د رفع علامه یې ضمه او د نصب او جر علامه یې فتحه ده. لکه: زینب: زینبات ــ حمام ــ حمامات ــ نهیر: تهیرات.

که چیرې په اخر دې هغه مفرد کې چې له هغه څخه مؤنثه جمع سالم جوړیږي د تانیث ممدودة تاء وجود لري باید حذف شي. لکه: مهندسة : مهندسات ــ تلمیذة: تلمیذات: سیاره ــ سیارات.

۲. هغه اسمونه چې په مؤنثه سالم جمع کیږي.

❖ إناث أعلام او صفات. لکه: حریم ــ ذینب ــ مرضع.

❖ هر هغه اسم چې په اخر کې يې تاء وي. لکه: خديجه ــ بدبعه ــ طالبه ــ رواية ــ بابة. لدې قاعدې څخه يوائې څو اسمونه مستثنی دي. لکه: إمرأة ــ شاة ــ شفة ــ أمة. چې د دوی جمع په ترتيب سره. نساء ــ شياه ــ شفاه ــ اماء ــ رائې.

❖ هغه اسم چې الف مقصوده د تانيث ختم شوی وي. لکه: سلمی ــ هدی ــ ذکری ــ کبری. خو هغه مختوم په الف مقصوره چې پر وزن دې فعلي او مذکر يې په وزن دې فعلان رائې. لکه: جوعي ــ عطشي ــ شبعی ــ په الف ائ تاء ته جمع کيږي او د دوی جمع. جياع ــ عطاش ــ او شباع رځي.

❖ هغه اسمونه چې په الف ممدوده د تانيث منتهي شوی وي. لکه: صحراء ت جرباء ــ حسناء.

خو هغه صفت چې په الف ممدوده د تانيث مختوم وي او پر وزن دې فعلاء وي چې مذکر يې پر وزن دي أفعل وي. لکه: حمراء ــ خفراء په الف ائ تاء نه جمع کيږي او جمع يې په وزن دې «فُعُل» رائې. لکه: حُمُر ــ خُضُر ــ صُفَرَ.

❖ د غير ذوی العقولو مصغر په الف او تاء جمع کيږي. لکه: نهير: نهيرات ــ صُبيل ټ بويب ټ مصيغ.

❖ د غيرذوی العقولو صفت.لکه: شامخ: شامخات ــ شاهق ــ شاهقات.

❖ زيات مصدرونه چې دری حرفونو څخه زيات وي. لکه: تطبيق ــ تنظيم ــ اصلاح ــ اکتساب ــ اکرام ــ امداد ــ اجراء ــ اشتباک.

❖ بعضې سماعي حالات: لکه: حمام ــ سجل ــ أم ــ امهات.

۳. هغه مقصوره، مفتوحه او ممدوده جمع په الف او تاء.

الف: کله چې له مقصور اسم څخه سالمه جمع مؤنثه جوړه کړو الف ته يې ګورو.

❖ که چيرې الف دريم حرف دې اسم وي خپل اصل ته يې راوړو. ( واو ــ ياء ) لکه: عصوات ( الف په اصل کې واو دی ) هدی: هديات ( الف يې په اصل کې ياء دی ).

❖ که چیرې مقصور الف څلورم او یا له هغه څخه لوړ وي په ( یاء ) بدلیږي. لکه: کبری: کبریات. ذکري: ذکریات ـــ مشتری: مشتریات او که مشتر وات اوویل شی شامع خطاء دی.

ب: که چې د منقوص اسم جمع پر الف او تاء جوړه کړو که چیرې یاء یې حذف شوي وي بیرته راګرځي. لکه: ممرت بأنهار جاریات. د ( جار جمع ).

ج: ممدود اسم په درط ډوله پر الف او تاء جمع کیږي.

❖ که چیرې همزه اصلي وي په خپل حال پاتې کیږي.لکه: انشاء ـــ انشاءات.

❖ که چیرې همزه د تانیث لپاره وي په واو بدلیږي. لکه: صحراء: صحراوات. حسناء: حسناوات.

❖ که چیرې له یا او یا واو څخه منقلبه وي جائز دی چې په واو بدله شي او یا همزه پاتې شي. لکه: سماء: سموات. په سماء که همزه بدله له واو څخه چې باب یې ( اسما یسمو ) دی.

او لکه: وفاء: وفاوات چې اصل همزه له ( وفی یعنی ) څخه دی.

۴. مونثه جمع سالمه له ساکن الوسطه ثلاثې څخه:

الف: کله چې یو مؤنث اسم دری حرفي او وسط حرف یې ساکن وي په دې صورت کې که چیرې لومړی حرف د هغه مفتوح وه په جمع کولو کې په الف او تاء سره دوهم حرف د وسط مفتوح ګرځي. لکه:

رکعة: رکعات. نظره: نظرات. نشره: نشرات.

ب: که چیرې لومړی حرف مضموم او مکسور وه نو په دې صورت کې په عین کلمه کې یعنې دوهم حرف که چیرې په مقابل دې عین د فعل کې واقع دی دری وجهې جائز دي.

تسکين، فتحه، او اتباع، په دې ځای کې اتباع په دې مانا دی چې دې عين کلمې حرکت لکه حرکت د فاء ګرځي. لکه:

حجرة: حُجَرات، حُجَرات يا حُجرات، ضمه، خدمة: خدمات، خِدَمات يا خِدِمات.

په عام استعمال کې خَدَمات رواج شوی چې غلط دی.

**دويم: مکسر جمع يا تکسيره جمع:**

مکسره جمع هغه دی چې د هغه تغيير په سبب چې دې مفرد په صورت کې وارديږي زيات له دوو څخه دلالت کوي.

مکسره جمع په ذوي العقول او غير ذوي العقول د مذکر او مؤنث راځي.

مکسره جمع په ډېرو شکلونو کې سماعي وي. لکه: صورة: صورُ، ميدان: ميادين.

او مکسره جمع په دوه ډوله دی.

د قلة ائ د کثرت جمله:

١. د قلة جمع: هغه جمع ده چې له درې ؤ تر لسو پورې دلالت کوي چې څلور وزنه لري.

الف: افعُل ـــ أنفس. لکه: انفس ـــ أنفس ـــ عين: أعين.

ب: افعال: سيف ـــ أسياف ـــ عنب ـــ اعناب.

ج: افعله: رغيف ـــ ارغفة ـــ محمدد ـــ عمِود ـــ عمدة.

د: فعلة: فتى ـــ فتيه ـــ ص ـــ صبية.

د قلة د جمع اوزان په لاندې شعر کې جمع شوی.

جمع قلة څلور دي. ابنيه ـــ اَفعُل ـــ اَفعال ـــ فِعلة ـــ أفعِلة.

د کثرة جمع هغه ده چې له درې څخه بيا تر لانهاية پورې دلالت وکړي چې مختلف اوزان لري چې بعضې يې په لاندې ډول دي.

الف: هغه وزن چې مذکر عاقل وصف پرې جمع کیږي. لکه: وزن ــ فعلة ــ فعلاء ــ فعلة ــ فعال ــ أفعلاء.

موزون: طلبة ــ شرفاء ــ فضاة ــ کتاب ــ اقویاء.

ب: د هغه وصف جمع چې پر وزن دی اَفعل، او مؤنث یې فعلاء وي. لکه: أحمرــ حُمر ــ اخفر ــ خفر ــ اعمی ــ عمیّ ــ ابکم ــ بکم.

ج: هغه وصف چې پر وزن دې فعِیل وي په هلاک یا درد باندې دلالت وکړي جمع یې پر وزن دې فعلی راځي. لکه: جریح ــ جرحی ــ مریض ــ مرضی ــ قتل قتلی ــ اسیر ــ اسری.

د: د هغه اسم جمع چې پر وزن دې فَعَل یا فعل راځي. لکه: جبل ــ جِبال ــ قلب ــ قلوب.

د منتهی الجموع او د هغې وزنونه:

- أفاعل. لکه: اعاظم ــ اکابر ــ افاضل.
- افاعیل. لکه: اناشید ــ أباریق ــ أغارید.
- فعائل. لکه: رسائل ــ عجائب ــ صحائف.
- مغاعل. لکه: مذاهب ټ مدارس ــ مساجد.
- مفاعیل. لکه: مفاتیح ــ مصابیح ــ منادیل.
- فواعل. لکه: جواهر ــ عواصف ــ شوارع.
- فعالیل. لکه: قنادیل ــ عصافیر ــ فوانیس.

یادونه:

کله کله د قلة د جمع اوزان په کثرة کې استعمالیږي. لکه: عنق ــ أعناق ــ فؤاد ــ أفئدة.

او كله كله د كثرة د قلة په مانا استعماليږي. لكه: رجل ــ رجال ــ قلب ــ قلوب.

۲. كله كله يوه كلمه په څو ډوله امكان لري جمع شي. داسې صفات د مذكر عاقل لپاره شته دي چې كله د مؤنثې سالمې جمع شروط په كې جمع شي په همدې وزن د مذكرې سالمې په وزن جمع شي. لكه څنگه چې مكسر جمع هم استعمال لري. لكه: كائب، عامل، عاقل او وفيّ.
كيداى شي چې دوى په كاتبون، عاملون، عاقلون، وفيون، جمع شي. همدا ډول روا دى چې په. كتبة ــ كتّار ــ عملة ــ عمال ــ عقلاء ــ اوفيا جمع شي.

۳. په لاندې شعر كې د جمع كثرة اولس ( ۱۷ ) وزنونه جمع شوى دي.

في السفنّ الشهب البِغاء صِور　　مرض القوب و ابحارعِبرَ.

غلمانهم للاشقياء عملى　　قطاع قضيان لاجل الفيلة.

و العقلا شرد و منتهى　　جموعهم في السبع و العشرء إنتهى.

سُفُن: عُمُد ــ كُتُب ــ مُدُن.

شُهُب: صُفر ــ عرج ــ بُكم ــ حفر.

لبغاة: قضاة ــ دعاة ــ دعاة.

صور: عرَف ــ لُعب ت قرى ــ حُجر.

مرضى: جرحى ــ أسرى ــ قبلى.

قلوب: صدور ــ عقول ــ نفوس.

بحار: جبال ــ رجال ــ صغار ت جمال.

عبر: منح ــ محن ــ نِعم.

علمان: صبيان ــ فئران ــ فيتان.

اسقياء: اذكياء ــ اصدقاء ــ اغنياء.

عملة: كتبه ــ طلبة ــ فهرة.

قطاع: حُرّاس ـــ حجاح ـــ كتّاب ـــ ركّاب.

قضبان: كثبان ت عمليان ت شجعان ـــ سودان ( داسو د جمع )

فِيَلة: قِردة ـــ دية ـــ قرطة.

عقلاء: رُكع ـــ سُجّد ـــ رضع ت قصّر.

جموع: أُسُود ـــ كسلور ـــ عروض.

پ

## نځم فصل

# اسم دې ترکیب له حیثه

اسم د ترکیب له حیثه په دوه ډوله دی. جامد ــ او مشتق.

جام اسم: هغه اسم دی چې له بل څخه نوي جوړ شوی او په دوه ډوله دی.

- ❖ د ذات اسم ( یا اسم جنس )
- ❖ د مصدر اسم ( یا مصدر )

د ذات اسم ( اسم جنس )

هغه اسم دی چې د هغه له لفظ څخه داسې فعل چې د اسم پر مانا وي نوي جوړ شوی. لکه: رجل ــ غصن ــ نهر.

مصدر ( د مانا اسم )

مصدر یا د مانا اسم هغه دی چې له زمان څخه په مجرده مانا دلالت وکړي. لکه: عدل ــ اجتماع ــ اکرام.

فعل په دری شیانو دلالت کوي. حدث، نسبت او زمان مثلا د تام فعل د سړي په دریدلو د ماضي په زمانه کې دلالت کوي او یعوم د شخص د دریدلو په حال او یا استقبال دلالت کوي. له دې کبله ویلای شو چې «قیام» له جملې دی. د ریګونو مدلولاتو د فعل څخه وي چې دې مصدر یا د مانا د اسم په نامه پیژندل کیږي. او په اصل کي ټول افعال او اسماء مشتق دي.

فعل یا ثلاثي، یا رباعي، یا خماسي، یا سلاثي وي چې هر یو د خپل خاص مصدر.

الف: سره لدې د ثلاثي افعالو د مصادرو بعضې اوزان بعضي نوعې مانا ګانې اختصاص لري چې به همدې اعتبار د هغوی د مصدرونو پیژندل ممکن ګرځي.

❖ د فعالة وزن: د هغه افعالو مصدر دی چې په حرف دلالت وکړي. لکه: ضاحة ــ زراعة ــ تجارة.

❖ د فَعلان وزن: د هغه افعالو مصدر دی چې په خوځښت او ويرې ( اضطراب ) ولالت کوي. لکه: غليان ــ دوران ــ طوفان.

❖ د فُعلة وزن: د هغه افعالئ مصدر دط چې په رنګ دلالت کوي. لکه: خضرة ــ صغرة.

❖ د فعال وزن: د هغه افعالو مصدر دی چې په درد ( داء ) يا صورت دلالت وکړي. لکه: شعال ــ زکام ــ بکاء ــ نباح.

❖ د فِعال وزن: د هغه افعالو مصدر چې په امتناع دلالت کوي. لکه: إباء ــ نفار ــ عتاب ــ عياذ.

ب: هغه مصدر چې په نومورړي مانا ګانو دلالت وکړي عالبا په لاندې اوزانو راځي.

❖ د متعدي فعل مصدر: د فَعل ( د فاء په فتح او په سکون د عين ) په وزن راځي. لکه: سمع ــ فتح ــ منع ــ ضرب ــ فهم ــ رقم.

۱. **د لازمی فعل مصدر:**

❖ فُعُول: ( په اول او دوهم ) لکه: قعد: قُعُوداً ــ جلس: جلوسا ــ طلع: طلوع ــ سجد: سجودا. خو د قَبِل مصدر په وزن قَبُول راځي.

❖ فعولة: لکه: سَهُلَ: سُهُولة ــ صعب: صعوبة ــ عذب: عذوبة ــ نعم: نعومة.

❖ فَعلُ: لکه: فرح: فرحاً ــ مرح: مرحاً ــ شبع: شبعا ــ طرب: طربا.

۲. **در باعي فعل مصدر:**

د رباعي افعالو مصادرقياسي دي دا مصادر د افعالو د صيغو د اختلاف له وجهې يو له بل سره تفات لري.

❖ کله چې فعل په وزن دې أفعَلَ وي مصدر يې په وزن دې إفعال راځي. لکه: انکر: انکار ــ اکرم ــ اکراما ــ ابقى: إبقاء.

❖ که چیرې فاء د فعل واو وي. لکه: وقف او اضح په مصدر په یاء بدلیږي. لکه: اوقف: ایقافاً ــ اوضح: ایضاحا ــ اورد: ایرادا.

❖ او که چیرې فعل معتل العین وي. لکه: اقام، اطال، امال مصدر یې په کسره دې همزه او په حذف دې حرف علة او په اَخر کې یې مربوطه تاء راځي. لکه: أقام: إقامة ــ أطال ــ إطالة ــ أقال: اقالة.

❖ کله چې فعل په وزن دې ( فعّلَ ) په تفعیف دې عین وي مصدر یې په وزن دې ( تفعیل : راځي. لکه: د رّب اتدریبا ــ تسَّق: تنسیقا ــ فرضّ: تفویظا.

❖ که چیرې فعل دې پورتني باب څخه ( فعّل ) معتل الاخر دط ( تَفعِلة یا تفعلة راځي. لکه: جزأ ــ تجزئ او تجزیه. خطا: تخیطئاً او تخطئة راځي.

❖ فاَعَلَ: کله چې فعل په وزن دې فَاعَلَ وي مصدر یې په وزن دې فِعَال یا فعالة راځي. لکه: قاتل ــ قتالا و مقاتلة ــ حاسب ــ حسابا او محاسبةــ خاصم ــ خصاما او مخاصمة.

❖ فَعلَلَ: کله چې ماضي فعل په وزن دې فعلل وي مصدر یې په وزن دې فعللة یا فعلال راځي. لکه: زخرف: زخرافا او زخرفة ــ .زلزل: زلزال و زلة ــ دحرج: دحراجاً و رحرجة.

۳. د ثلاثي، خماسي، او سداسي فعل مصدر:

کله چې خماسي، او سداسي فعل د وصل په همزه شروع شوی وي مصدر یې په وزن دې فِعَل او کسری د ریم حرف او په ماقبل اخر کې یې الف زیات شي. لکه: اجتمع: اجتماعاً ــ اندفع: اندفاعاً ــ استقبل: استقبالاً. کله چې فعل په زائده تاء شروع شوی وي مصدر یې په وزن د فعل ماضي او ضمه دې ماقبل اخروف راځي. تقدّم: تقدّماً ــ تعلمّ: تعلّما ــ تدجرح ــ تدجرحا.

۴. میمی مصدر:

هغه مصدر دط چې په سر کې یې میم راځي او په عین مانا دې مصدر دې خپل فعل وي.

- ❖ میمي مصدر له ثلاثي فعل څخه چې په سر کې حرف علت نوي په وزن دې مَفعَل راځي. او که چیرې د مثال وي نو په وزن دې مَفعِل په کسره دې عین راځي. لکه: عرض رأیه معرضاً ــ ( ای عرضاً منطقیا ). لقد کان فی کلامه موقع حسن ( ای وقع حسن ).
- ❖ میمی مصدر غیر له ثلاثي فعل څخه په وزن دې مضارع وي د هغه فعل سره له ابدال حرف مضارعة په میم او فتحه د ماقبل اخر جوړیږي. لکه: قلت له إلی اعلتقی ( ای إلی الالتقاء ).

یادونه: کله د ممیم مصدر په اخر کې مربوطه تاء زیاتیږي. لکه: مجبة ــ موعظة ــ منفعة ــ مفسدة.

**۵. ضاعی مصدر:**

ضاعی مصدر هغه ته ویل کیږي چې په اخر کې یې یاء د نسب او تاء د تانیث ملحق شي ترڅو په یوه مصدري مانا دلالت وکړي.

لکه: إنسانیة ــ اشتراکیة ــ حریة ــ وطنیة ــ مسئولیة ــ وحشیة.

**٦. د مرة او هسیة اسمونه:**

د مرة اسم هغه مصدر دی چې په عدد یا څو واري وقوع د فعل دلالت کوي چې له ثلاثي مجرور څخه په وزن دې فعلة راځي او له غیر ثلاثي و څخه پر وزن دې مصدر سره له یوڅه زیادته په اخر دې همدې مصدر کې. لکه: أکلت: أکلة ــ اِنطلق: انطلاقة ــ اکرمة: اِکرمة.

د هسية اسم: هغه مصدر دی چې په هسیت د فعل د وقوع په وخت کې دلالت کوي او له ثلاثي فعل څخه په وزن دې فعلة راځي او له غير ثلاثي څخه کومه قياسي صيغه نلري. لکه:

نظرت إليه نظرة الحائر ــ جلست جلسة العماء.

**۷. دې مصدر عمل کول:**

مصدر لکه خپل فعل داسې عمل کوي يعنې فاعل مرفوع او مفعول منصوب ګرځوي.

او مصدر په دوو حالاتو کې عمل کوي.

❖ کله چې له خپله فعل څخه نائب وي. په دې مانا چې خپله فعل په مصدر کې عامل نوي په دې حالت که مصدر له خپل فعل څخه په نيابت عمل کوي. لکه: ترکاً الإهمال ( ای أترک الإهمال ) الاهمال د مصدر لپاره چې ( ترکاً ) دی مفعول به دی.

❖ کله چې مصدر په «ان» او فعل عوض کړو هغه مانا افاده کړي کومه چې صريح مصدر هغه افاده کوي. عجبت من شرب زيد العسل.

په دې جمله کې دې مصدر پر ځای چې «شرب» دی. « أن يشرب» راوړ او ووايو. عجبت من أن يشرب زيد العسل. عين مانا افاده کوی. په لومړي ترکيب کې «العسل» مفعول به د مصدر لپاره او په دوهم کز مفعل به د فعل لپاره دی.

**کتنه:**

مصدر په عادي توګه خپل فاعل ته مضاف کيږي او وروسته مفعول به منصوب ذکر کيږي په دې حالت کې فاعل لفظا مجرور او محلا مرفوع وي. پدې ډول مخکنی جمله داسې تحليل او ترکيب کيږي.

عجبت: ماضي فعل مبني او تاء دې له مصدر ( شرب ) مجرور لفظا او مرفوع محلا.

العسل ــ مفعول به د مصدر، منصوب په فتحه.

۸. صريح او مؤل مصدر:

كله چې د مصدر لفظ په كلام كې ذكر شي هغه ته صريح مصدر وايې لكه چې په مثال دي. عجبت من شرب زيد العسل ( شرب ) صريح مصدر دى.

او كله دمصدر لفظ په كلام كې نوي ذكر شوى خو مصدري مانا په كلام كې ليدل كيږي چې دې مؤل مصدر په نامه ياديږي.

مؤل مصدر له لاندې تركيبونو څخه جوړيږي:

- أن اوئ فعل څخه. لكه: أريد أن اقابلك ( اى اريد مقابلتك ).
- ما او فعل څخه. لكه: يسرني ماعلمت ( أى يسرني عملك ).
- أنّ او د هغه له اسم او خبر څخه. لكه: هدفه أنه ينجح فى الإمتحان ( أى هدفه نجاحه فى الامتحان ).
- دې مؤل مصدر اعراب عين هغه اعراب دى كوم چې صريح مصدر په هغه محل كې واقع كيږي، نو مؤل مصدر لكه صريح مصدر، مبتدأ، خبر، فاعل، نائب فاعل او يا مفعول به واقع كيږي. لكه: إن تتحدوا اكرام لكم: إن: مصدري او د نصب حرف. تتحدوا: مضارع فعل منصوب په حذف دې نون.

واو: فاعل او مؤل مصدر له أن او فعل په محل دې رفع كې. مبتدأ: لكه: يسرني أن يطيع الولد أباه: أن مصدرية او د نصب حرف.

يطيع:فعل مضارع منصوب په فتحه دې يسرني فاعل. لكه: عرف أنک كريم.

أن:  د توكيد او نصب حرف ـــ كاف: ضمير مبني پرفتحه په محل دې نصب كې اسم دی. أنّ ـــ كريم: خبر دی. «أن» مرفوع په ضمه او مؤل مصدر له أنَّ او اسم او خبر څخه نائب دی فاعل د عرف لپاره. لكه: أو دَّ أن تخلص فی عملک.
أن: مصدری او د نصب حرف ـــ تخلص: مضارع فعل منصئب په فتحه او فاعل يې مستتر ضمير ( أنت ) او مؤل مصدر له أن او فعل څخه مفعول به د ( أودّ ) لپاره.

**مشتق اسم**

مشتق اسم هغه اسم دی چې له بل اسم څخه اخيستل شوی وي او په يوه شي چې متصف په صفت وي دلالت وكړي.
لدې كبله اشتقاق عبارت له جوړولو د يوې كليې له بلې كلمې څخه په هغه صورت كې چې دې مشتق او مشتق منه په مانا كې تناسب موجود وي او په لفظ توپير ولري.

مشتق اسمونه اوه دي

١. اسم فاعل ( او د مبالغې صيغې ).
٢. د مفعول اسم.
٣. صفت مشبه له اسم فاعل سره.
۴. اسم تفضيل ( د تفضيل اسم ).
۵. اسم زمان ( د زمانې اسم ).
٦. اسم مكان ( د ځای اسم )
٧. اسم اله.

١. اسم فاعل او د مبالغې صيغې:

اسم فاعل هغه مشتق اسم دی چې په هغه شخص یا شي دلالت کوي په کوم چې قعل د هغه پواسطه سرت رسیدلی ده. لکه: نام الرجل فهو نائم، یضرب الولد اخاه فهو ضارب. نو دنائم کلمه مشتق له نوم څخه وي او دلالت په هغه شخص کوي چې نوم له هغه څخه صادر شوی یا د هغه پواسطه سرته رسیدلی او د ضارب کلمه له ضرب څخه مشتق ده چې په هغه شخص دلالت کوي کوم چې ضرب له هغه څخه صادر شوی.

**د اسم فاعل صیغه:**

**لومړی: له ثلاثي فعل څخه:**

له ثلاثي فعل څخه اسم فاعل دې ( فاعل ) پر وزن راځي او که چیرې عین د فعل الف وي په همزه بدلیږي. لکه:

کتب ــ کاتب ــ طعن ــ طاعن ــ قرأ ــ قارئ ــ رمی ــ رام ــ صام ــ صائم ــ قال ــ قائل ــ با غ ــ بائع ــ (عین الف دې فعل ).

اسم فاعل له هر ثلاثي مفتوح العین فعل څخه پرته له یوڅو محدودو فعلونو څخه. لکه: طاب ــ شاب ــ شاخ. څخه پر وزن دې فاعل راځي. همدا ډول له مر مکسور العین متعدي فعل څخه هم په وزن دې فاعل راځي. لکه: رکب ــ راکب ــ علم ــ عالم.

خو له مضمو العین فعل څخه لکه: ضعف ــ صعب ــ جمل. او له لازمي مکسور العین فعل څخه لکه: فِرح ــ حمِر ــ عطِش. اسم فاعل د فاعل پر وزن نه بکله په مختلفو نورو اوزانو راځي. لکه: ضعیف ــ صعب ــ جمیل ــ فرح ــ احمر ت عطشان. راځي.

چې پدې صورتونو کې د صفة مشبه په نامه یادیږي چې وروسته د اسم مفعول څخه بیا تشریح کیږي.

**دوهم: فاعل د غیر ثلاثي فعل څخه:**

اسم فاعل له غیر ثلاثي فعل څخه په هر وخت کې د مضارع په وزن چې مضارعة حرف یې په مضموم میم بدلیږي او ماقبل آخر ته یې کسره ورکول کیږي. لکه: قاتل: مقاتل ـــ أحسن: محسن ـــ افاد: مفید ـــ شرَّع: مشرع ـــ تقدم: متقدم ـــ استغفر: مستفغر ـــ اشتقام.

**د اسم فاعل اعراب:**

اسم فاعل د مفرد، تثنیې او جمع په شکل کارول کیږي او هم د مذکر او مؤنث په ډول استعمال لري. او په هر شکل د موقعیت له لحاظه اعراب اخلي.لکه: من الأفضل أن تکونی مقتصدة.

مقتصدة: خبر د کان منصوب په فتحه:

**د اسم فاعل عمل کول:**

په کلام کې اسم فاعل په دې دوه ډوله استعمالیږي.

١. دا چې یوائې اسم فاعل په حدث باندې له دلالت څخه مجرد استعمال شي. او په دې صورت کې د فعل عمل نکوي. لکه: جاء القاضی ـــ هو عامل ماهر ـــ قبض علی القاتل ـــ اسم فاعل په دې دری واړو مثالونو په حدث دلالت نکوي نو عامل ندی.

٢. بل داچې اسم فاعل په قیام دې حدث دلالت وکړي.

( که چیرې د هغه په ځای هغه فعل چې اسم فاعل ترې مشتق وي په عوض یې راشي مانا یې صحیح کیږي ) پدې صورت کې لکه فعل عمل کوي. فاعل، مرفوع، مفعول به منصوب ګرځوي خو په لاندې دوه حالاتو کې له خاصو شرایطو سره.

الف: يو دا چې اسم فاعل محلي په ال ( په مانا  دې الذي، التي ) وي فاعل او مفعول به وروسته له اسم فاعل څخه متصل ذکر شي. جاء الرجل الفاضل أخوه.

أخوه: فاعل دې اسم فاعل «الفاضل» ځکه چې اسم فاعل محلي په «ال» دى او وروسته له هغه څخه فاعل متصل ذکر شوى او که چيرې دې اسم فاعل پر ځاى فعل راوړل شي او ووايو. جاء ارجل الذى فضل أخئ ـــ نئ مانا صحيح کيږي.

او لکه: تجب معاقبة الخائن وطنه. د اسم فاعل مانا افاده کوي.

ب: کله چې اسم فاعل له «ال» څخه مجرد وي د عمل شرط يې د ادى چې د حال يا استقبال په مانا وي ( يعنې چې د مضارع فعل راوړل يې پر ځاى صحيح وي ) همدا ډول په خپل ماقل باندې معتمد وي لکه کله چې وروسته له نفي، استفهام، مبتدأ، موصوف، ذوالحال يا حرف ندا څخه واقع شي. لکه: ما ذهب بکر الى لسوق غداً.

ما:د نفي حرف ـــ ذاهب ـــ مبتدأ مرفوع په ضمه فاعل دې اسم فاعل الى السوق ـــ جاء او مجرور تر ( ذاهب ) پورې تعلق نيسي. غداً: ظرف زمان منصوب مفعول فيه.

أتارک أنت عملک الأن: همزه د استفهام حرف، تارک. مبتدأ: مرفوع په ضمه ـــ أنت ضمير مبني په محل دې رفع کې فاعل دى. اسم فاعل چې تارک دى. عملک: مفعول به دې اسم فاعل لپاره منصوب په فتحه او کاف: ضمير مبني مضاف اليه په محل دې جر کې. الأن: ظرف زمان مبني پر فتحه.

لکه: الفلاح حارث تورة الارض:

ثورة: فاعل دې اسم فاعل «حارث» الارض: مفعول به دې اسم فاعل. لکه:مررت برجل ضارت عمراً. ضارب معتمد صفت په موصوف مجرور.

عمراً: مفعول به د اسم فاعل «ضارب» لپاره.

